مکمل او مدلل

# د شرک او بدعت مسئلې

مؤلف

مولانا محمد رفعت (قاسمی)

پښتو ژباړه:

عبدالله ګل (ریان)

خپرونکی مکتبهٔ رشیدیه

سرکي روډ کوټه. فون: ۲۶۶۲۲۶۳

دقرآن اوحديث په رڼاکي

بشپړ اومدلل

# دشرك اوبدعت مسئلي

ددیوبند درنومفتیانوله تصدیق سره

مؤلف

مولانامحمدرفعت قاسمی ددیوبند ددارالعلوم مدرس

ژباړونکی: عبدالله ګل ریان

خپرونکی

رشیدیه کتابخانه سرکی روډ کوټه

## دکتاب پېژندنه :


دکتاب نوم: دشرك اوبدعت مسئلي

مؤلف : مولناقاري رفعت (قاسمی)

پښتوژباړه: عبدالله گل (ریان)

دکمپوزاوترجمی چارې: دنورالقرآن اداری دترجمې اوکمپوزخانګه

کمپوزر: طالب العلم عبدالغفور (مظلوم یار)

تصحیح اوډیزاین: ابوخالد مولوی عبدالاحد (مجروح)

خپرونکی : رشیدیه کتابخانه سرکی روډ کوټه

چاپ ځای : لاهور

چاپ کال : ۲۰۰۷ داګست میاشت

چاپ شمیر: ۱۵۰۰ ټوکه

چاپونکی : محمد ساجد دموبائل شمیره / ۰۳۳۳۷۸۲۵۴۸۴

# معارف او مسائل

## د عقیقي د رسم بیان

## د ربيع الاول رواجونه

اللهم اختم لنابالخیروالسعادة والبشارة والایمان

ابوخالد

## دسرخبری

**نحمده ونصلی علی رسوله الکریم**

دزړه له اخلاصه دعاکوم چې لوی خدای ﷺ دی **درفعت قاسمی** صاحب اودده په ډول دنورو علماؤ عمر ډیر اوږد کړي ترڅو دمحمدی دین پردی سپیڅلی لاره نورچراغونه هم ولګوی له ډیره وخته داسی خبری په زړه کی راسره وی چې قانع کونکی جواب به می نشوموندلای له علماؤ مجلسیانو ملګروبه می تل پوښتنه کوله چې په دی اړه به تاسو کوم مستند حدیث نه وی لیدلی مثلاً زموږ په ټولنه کی مشهوره ده چې لنګوټه که خرابه شوه نوسنت داده چې په ولاړی وتړله شی اوله ځینو کسانو می لاداهم اوریدلي چې که په مسجد کی وی بیابه ئي په ناستې تړی خو قانع کونکی جواب می پیدانه کړ څوورځې مخکې می یوه ملګری یوه رساله راته راوړه لمړی می فهرس وکوت داعنوان می ترسترګوشوچې لنګوټه په ولاړی پرتوګ په ناسته سنت دی په (۵۴) مخ کی لیکلی دی چې داسنت دی اوډیرې فائدې لري خودفائدو ذکرئي نه وو شوی وروسته ئي اووه قولونه نوررانقل کړی وو چې په هغوکی هم دیوه مستند حدیث ذکرنشته یواځې داویل شو ی چې که په ناسته لنګوټه وتړی نوپه داسی مرض به اخته شي چې دوایي نه وی داسرار العارفین پراول جلد(۳۴۸)مخ ئي حواله ورکړی چې هغه ماپخواهم کتلی ووخوداتسکین می ځکه نه ووشوی چې د حدیث په نامه عربی عبارة ووخوسند اوراوی نه وو اونه زما په نورکتابونوکی ترسترګوشوی ووبل داچې له دغوالفاظوبغیر دنبی کریم ﷺ فعل یامستندقول یادصحابي یاتابعي یاتبع تابعي قول نه دی لیدل شوی سره له دی چې صحابه کرام ډیرحریصان هم ووچې دنبي کریم ﷺ هرقول اوحرکت رانقل کړي ،اوبل دسنت نوعیت نه وومعلوم چې کوم سنت دی ، اوبل ددې حدیث رنګ له نوروحدیثونو هم چپه ووځکه دلته دسنت پرترک باند ی وعید راغلی اونوراحادیث دارنګه نه وي بلکه دکولوفائدې ئې ذکرشوي وي لکه دمسواک په اړه حدیث ،د اوداسه، دوډی اونوروپه اړه چې راغلی دی بل داچې دا حدیث

يقيني لـه صحاح ستة څخه نه ده ځکـه هلته نه ده موندل شوي او داسنت لـه مؤكداتو څخه يقيني نه ده نو كـه بالفرض حديث هم شي او داعمل سنت شي نو بيا دنبي كريم ﷺ درحيم ذات لخواچي ډير ځايونه ئي پرامت ژړلي هم دي دزوائدو سنتو پر نه كولوولي دومره سخت وعيد (ناعلاجه مرض) بيان شوی دی اوبل داچي داخبره داسی نه ده كه چانكاروكړ داوعيدبه ورتـه وي بلكه داسي ليكلي ده كـه چاونـه كړ پـه دنيـاكي بـه پـه داسـی مـرض اختـه شي او طبعاً ددنياسزايوه نمونه قدروي او داخيرت سزانوره هم سخته وي نوتاسو دسنت هدى اوسنت زوائدحكم وگوری چي څه دی ؟ سنت طبعاً داسی نـه وی اوبل داخبره هم شته چي صحيح احاديث پـه شپږو صحاحوكي حصر نه دی اوصحاح په صحيحوكی حصردی نوكوم حديث چي په صحاحوكی نه وی دهغه حديث به ختماً سند اوطريقه داسنادوی كه دانه وي نوبيادصحاحوامتيازاواعتمادڅه شو؟ اوبل داچي دحديث اثبات خودفقهاؤ پـه قول باندی نـه كيږي كـه څه هم ډيرجليل القدر فقهـاء وي ځكه داحاديثو په علم كي سند ،اجازه او ډيرشروط نورهم دی اوكوم فقيه چي داحديث نقل كوي ياحكم كوی حتماً بـه پـه قرآن ،حديث ،اجماع ،قياس كي مأخذ ورتـه وي اوبياچي كوم څوک لـه هغه څخه داحكم نقل كوي نوحتماً به ورته دفقهاؤ طبقی معلومی وی كتابونه خو ډيردی په ښوښوعلماؤ كي هم داسی كتابونه شته چي فتوی ورڅخه اخيستل نه دی جائز مولناعبدالحی لكهنوی رحمة الله عليه پـه عمدة الرعايه كي ليكي چي لـه كمياب كتابونو څخه حكم اخيستل روانـه دی لكـه نهر ،عينـی ،دكنز شرح ،درمختار دتنويرالابصارشرح له دی وجي چي دمؤ لف حال ئي ښه معلوم نه وی لكـه دملامسكين اوقهستانی اودارنگـه دزاهدی تصنيفات چي دايـوهم داعتمـاد وړنه دی اودارنگـه دابوالمكارم قاضی شهاب الدين دولت ابادی ،نجم الـدين مختاربن محمودبن محمدبن زاهدي معتزلی الاعتقـاده حنفی الفروع تصنيفات لكه قنيه وحاوی ،مجتبی ،شرح مختصرالقدوری ،زادالائمة

، سراج وهاج ، خلاصه کیدانی اوداسې نورډیر کتابونه دی چې دفتوی اودحکم لپاره داعتمادوړ نه د ی .
اوداخبره مې هم لیدلې وه چې قاعده کلیه داده که دسنت اوبدعت تعارض سره راشی سنت پرېښودل لازم دی ځکه که سنت پرېښودل شی دومره بدکارنه ده لکه دبدعت کول .شاغلی لیکوال ددی سنت ثبوت،دیوه صوفی په قصه هم کوی چې په یوه کلی غلاشوی وه یوه صوفی سهارخلگوته وویل چې داتاوان زه ورکوم ځکه چې ماماښام پرتوگ په ولاړی و اغوستی نوځکه غلاوشوه نودلته خویوه خبره داده چې په اخیرت کې هم د(وَلاَ تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى ) (سورة انعام ۱۶۴ ایة ) حکم دی نوکه په دنیاکې دصوفی صاحب عمل دوام پیداکړی نو حکومت باید سهار دکلې گناهگارولتیوی اومحکمې ته ئي کش کړی ترڅوسزااوتاوان دواړه ورکړی اوغله ازادپرېږدی ځکه گناه صوفی صاحب کړی نوبه په دی ډول له دین څخه شهر ناپرسان جوړشی .
خوپه لنډډول نن مې الحمدالله پوره اطمنان وشو چې داخبره سنت نه بلکه بدعت اوله ځانه جوړه شوی خبره ده چې د مولانارفعت قاسمی صاحب په دغه کتاب کی می ولیدل چې حواله ئي دمولاناتهانوی صاحب پراغلاط العوام باندی ورکړی ده هغه توري دادي:(( مسئله :- ځیني خلک لیدل کیږي چې دلنگوټي دټرلولپاره کښیني ځیني ناست وي ولاړشي . دا اصل نه لري .
مسئله :- ځیني عوام دافکرکوی چې که نوي جوړه یاجامه واغوستل شي دهغوی حساب کیږي خوکه درجب له میاشتي بیادرمضان تروروستنۍ جمعي واغوستل شي حساب نه لري داټول غلط دي . (اغلاط العوام مخ ۱۴۹)
په دی خبره ځکه زماباورټینگ شویوداچې ذکرشوی شکونه راته ډیروو بل دقاسمی صاحب خبره می ولیده اوپردی کتاب بلکه دده پرټولو کتابونوباندی ددیوبند دغتوعلماؤ لکه مفتی سعید احمدصاحب ،مفتی محمدظفیرالدین صاحب ،کفیل الرحمن نشاط صاحب اونوروتصدیقونه شوی دی اوهره مسئله ئي له حوالی اوڅیړنی سره یوځای رانقل کړی ده .

ورپسی می بل عنوان وکوت هغه داچې د(یارسول الله ندایانازه) رواده مسئله پرخپل ځای خوښاغلی لیکوال وهابیانوته دومره په خښم شوی چې دیارسول الله ندائې مطلقاً ثابته کړی په دی ډول لکه بریولویان چې ئی ثابتوی یعنی دحاضراوناظر په طریقه هم رواده په دی ځای کي دومره ډیردلائل وائي چې خپله لاره هم تری ورکه شوی ددی پرځای چې دی خپله داهل السنت والجماعت عقیده روښانه کړی دبریلویانوعقیده تائیدوی تاسو وگوری داهل السنت والجماعة عقیده داده چې یارسول الله ندایانازه مطلقاً رواده که دحاضراوناظرپه ډول وی هم ؟اودده په ویناپروهابیانو ئي داتورلگولی چې هغه له دی څخه هم منکردی چې دنبی کریم ﷺ روضې ته مخامخ هم یارسول الله ویل سم نه دی خوپه دی اړه درفعت قاسمی صاحب هغه زرین اوربنانه تحقیق رانقل کوم چې په دې اړه ئی په دې کتاب کی کړی نوربه ئی تاسو دمحمدموسی صاحب له فتوی سره پرتله کړئ:

**پوښتنه** :- - الصلوة والسلام علیک یارسول الله ویل څنگه دی ؟

**ځواب** :- - که تاسو دژوند په ټولو گوښو کي درسول الله ﷺ د سنت دتعمیل رښاخپروئ اوله سنتو سره مو په لوړه کچه اړیکي وي. ټول اعمال مو پر سنت برابروي چې په پایله کي مو له رسول الله ﷺ سره مینه زیاته شوي وي مینه زیاته شي دعشق ځای ته ورسیږي. له دي ځایه ترمدیني منوري ټولي پردي لیري شوي وي او تاسو دلته ولاړ یاست اودرسول الله ﷺ سپیڅلي روضه ویني نوبی تکلیفه وایاست الصلوة والسلام علیک یارسول الله. دچاپه منع کولو مه منعه کیږئ. خو که پردي لري شوي نه وي اوله دي ځایه مو روضه په سترگو نه راتله نومعلومه ده چې په مینه کي کمښت ده نوله دي ځایه وراندي اللهم صل علی محمدوعلی آل محمد (تراخیره) وایاست. تکلیف وکړئ، سفروکړئ مدیني ته ولاړشي له روضي مبارکي سره ودریږي اوپه ډیر آدب اواحترام سره ووایاست الصلوة والسلام علیک یارسول الله له لیري څخه همداسي نعري وهل بي ادبي ده.

دادبزګرانوطریقه ده په قرآن کریم کي د رسول الله ﷺ په هکله راځي:( يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ )الآية.. خپل ږغ د رسول الله ﷺ تر ږغ مه لوړوئ. د ځینو خلکو ږغ قدرتاً لوړوي، په خبروکي ئي ږغ لوړیږي. همداسي آیت نازل شوچي خپل ږغ د رسول الله ﷺ تر ږغ مه لوړوئ (وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ )، د رسول الله ﷺ په وړاندي په داسي زور سره خبري مه کوئ لکه تر خپل منځ چي ئي کوئ، هسي نه چي ستاسو اعمال ضائع شي او تاسو وربانذي ونه پوهیږئ کوم کسان چي د رسول الله ﷺ په حضور کي په ټیټ ږغ خبري کوي د هغوئ زړونه امتحان کړی شوي دي د هغوئ په زړونو کي تقوی موجوده ده. د دي آیت ترنزول وروسته ځینو صحابه وو داسي خبري کولي چي د بیا بیا پوښتلو ضرورت به وو، هغوئ ویریدل چي د رسول الله ﷺ په حضور کي په لوړ ږغ غیدلو به مو اعمال ضائع شي.

(إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ) کوم خلک چي لیري ولاړوي او درته نعري وهي هغوئ قرآن کریم بي علمه بللی دی.( أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ) له دي ځایه یاله بل ځایه نعري وهل یارسول الله ! داسي نعري وهونکي قرآن ناپوهان بللي دي. نو له لیري نعري وهل، ږغکول، دادول الصلوة والسلام ویل لکه د ښوونځئ ماشومان چي تراني وائي یوتن یو لفظ وائي بیائي ټول یو ځای وائي. داغلطه لاره ده. نه له قرآن څخه ثابته ده او نه له حدیث شریف څخه، نه صحابه کرامو داسي کړي دي او نه مجتهدوامامانو. که درود دوایاست په یوه ګوښه کي کښینئ په پوره توجه سره، په خاطر جمعي سره چي څومره غواړئ هغومره وو ایاست. څوک منع نه کوي. که موڅوک منع کوي د هغه خبره خوو حی نه ده مه منع کیږئ خو دومره خبره ده چي د خطاب په صیغه سره صلوة په زوره ویل، په ګډه سره ویل داغلطه طریقه ده او داسي فکر کول چي رسول الله ﷺ په خپله دلته تشریف راوړی

دالا ډيره غلطه ده. اللهم صلی علی سيدنا محمد مناسب دی او د رسول الله ﷺ د محبت په جوش کي راتلل عقائد مه خرابوئ د عقائد وسم ساتل ضروري دی. په جوش او مينه کي راتللو خوصحابه وو داسي څه کړي نه دي چې د رسول الله ﷺ له شان سره منافی وي يا به عقائدو ته کومه خطره وه. د عقيدي ساتل خورا ضروري دي. د جوش او ميني نتيجه خو په يهودانو داشوه چې يهودانو عزير ؑ ته د خدای ﷻ زوی وباله او نصاراوو عيسی ؑ د خدای ﷻ زوی وباله بت پرستان چې څو مره بتان لمانځي هغه ټول د جوش او محبت نتائج دي. له همدي امله په اسلام کي د ميني او جوش حدود قائم او ثابت دي او په هغو حدودو کي مقيد دي. له همدي کبله د عقائدو تصحيح خورا ضروري ده. د خلاصون مدار عقيده ده. د ايمان مدار د عقيدي په سموالي دي. که عقيده غلطه شي ايمان خرابيږي نجات به نه وي.

(د ديوبند دارالعلوم د مفتی محمود احسن صاحب ملفوظات دانور حواله اکتوبر ۲۰۰۲)

اوبل ځای:

مسئله:- په لمانځه کي اَيُّهَا النَّبِی ويل شرعاً ثابت دی نو داويل جائز دی او دا عقيده لرل دی چې ملائيکي ورته درود او سلام رسوي.

(فتاوی محموديه ټوک ۵ مخ ۲۷۶ - بخاری ټوک ۳ مخ ۳۲ او مظاهر حق)

**يارسول الله ﷺ ويل څنګه دی؟**

**مسئله**:- په يارسول الله ويلو کي ډير تفصيل راغلی دی، ځيني طريقي جائز او ځيني ناجائز (ناروا) دي. بيشکه رسول الله ﷺ حيات دی. که ئي له قبر سره درود او سلام وويل شي په خپله ئي اوري او که ليري وويل شي فرشتي ئي ورته رسوي او دويونکي نوم ورته وائي او رسول الله ﷺ ورته ځواب وائي (دا په حديث شريف کي ثابت دی) داسي که ليري وي او که نژدي يارسول الله ويل صحيح دی خو داعقيده لرل چې له ليري څخه ئي د الله ﷻ په خير رسول الله ﷺ په خپله اوري صحيح نه ده. همداسي په

التحيات كي (السلام عليک ايها النبی )ويل كوم دشک ځای نه دی.
دتلاوت په وخت كي كه (ياايها المزمل )دعبادت په توګه ويل كيږي كوم
حرج پکښي نشته. خودادهغه دحاضراوناظربللولپاره دليل ګرزول
ناپوهي ده. كه حاضراوناظرونه بلل شي اوبيوازي دميني دجوش په وخت
كي يارسول الله وويل شي جوازلري. كله كله دډيري ميني يازيات غم له
امله دحاضراوناظرله عقيدي پرته غائب ته د(نداء) لفظ ويل كيږي داهم
جوازلري. كله بيا په تخيل كي په شاعرانه اوعاشقانه ډول خطاب كيږي په
دي كي هم كومه ستونزه نشته (شاعران ديوالونوته هم خطاب كوي) دايوه
محاوره ده دحاضراوناظرعقيده پکښي نشته. البته له صلوة اوسلام څخه
حاضراوناظر بلل اودحاجت غوښتلوپه ډول په ناسته ولاړه كي يارسول الله
! يارسول الله ! ياعلی ! ياغوث ! اونور.... ويل بيشكه ناجائزاومنع دی.
لنډه داچې پرته له الله ﷻ څخه بل چاته كه هغه نبی وی ياولي
دحاضراوناظراوحاجت پوره كولوعقيده درلودل يوه باطله اوغلطه عقيده
ده. حاضراوناظربيوازي دالله ﷻ ذات دی.
مقصدداده چې يارسول الله !ياغوث !اونورپه دي عقيده ويل چې دالله
ﷻ په څيردا حضرات هم هرځای حاضراوناظردي يازمونږ نعري اوري
اوحاجت موپوره كوي داناجائزدی. كه په خپله داسي عقيده ونه لري
اودنورودعقيدي همداسي انديښنه پيداكيد له بيا هم ناجائزدی چې
دهغوئ په وړاندي همداسي الفاظ وويل شي.
(فتاوی رحيميه توک ۲ مخ ۳۴۸ په حواله د مشکوة شريف توک ۱ مخ ۴۱ اوفتاوی محموديه توک ۱۵ مخ ۹)
اوبل ځای:
ديارسول الله ! ويلوتفصيل:
په قرآن كريم كي په ډيروآياتونومباركوكي په قطعي اوواضح ډول
داامورثابت دي: يوداچې الله ﷻ هغه يوازينۍ هستي ده چې هروخت
هرځای موجوددی. نه يوازي داچې زمونږ غږاوري بلكه زمونږ دزړه غوښتنه

هم اوري او دذهن او زړه په هر کیفیت مو خبردی. بلـه دا خبره چې ټول انبیاء
او اولیـاء بنـد ګـان او بشر( انـسانان ) دي. پـه هغـوئ کـي کـوم مـافوق
البشرطاقت اوصلاحیت نشته. له هغوئ څخه چې کوم معجزات او کرامات
څرګند یږي ،هغه هغه وخت وي ،کله چې ئي الله ﷻ مناسب وبولي او اراده
ئي وکړي. دریمه خبره داده چې له بلي هستي سره داسي صلاحیت فرضول
چې هغـه دالله ﷻ ځانګړتیـاده ،داشـرک ده. الله ﷻ یـوازي پـه ذات کـي
واحد نـه دی بلکـه پـه صـفتونوکي هـم واحـددی. هرځـای هرڅـه اوریـدل
او فیصله کول دادري خبري قطعي دي. نورولي څوک دهغـه خلاف عقیده
لرلای نه شي. هراستدلال ردکیږي خو قرآن څوک ردولای نه شي. ښـه پـوه
شئ چې پرته له الله ﷻ څخه بل څوک حاضراوناظرنشته او یا رسول الله اپه
دي عقیـده ویـل چې رسـول الله ئي پرتـه لـه ملائیکـو اوري. دادشرک
یو خوراناوړه ډول دی. الله ﷻ مودي وساتي (محمد رفعت قاسمی)
اوتاسـو وګـورئ محمد موسـی صـاحب یارسـول الله مطلقـاً ثـابتوی چې
دادناپوهو بریلویانو عقیده هغه بریلویـان چې دحاضراوناضرعقیده لری او بل
ځای دانښاغلی ددی نداثبوت په دي ډول هم کوی چې لـه روضې مبارکی سره
داندا یاسلام ثابت د ی او پـه دی نـه دی خبرچې پـه دغـه خبـره کی اتفاق دی
اخـتلاف نـشته .خودایـوه مقدمـه ده دومـره ګنجـایش نـشته چـې دده
پرټولو خبرورښاوا چوم خپلـه نـوره خبـره بـه پـوره کـړم ددې رسـالې (المسائل
التسهیلة فی مسائل الغریبة ) فهرس پـه پـای کی ووخو کله چې مې دسرورقه
راواړله په مقدمه کی ئي دا دردونکی جملـه استعمال کړي وه چې دابن تیمیه
رحمة الله علیـه پـه اړه ئي دکفرالفاظ اسـتعمال کړي وو اسـتغفرالله هغـه کـه
هرډول ووخوزمونږ له شان سره دامناسبه نه ده ځکـه داما م صاحب مذهب داده
چې که په سړی کی نه نوی احتمالـه دکفروویو داسلام هغه یوبـه ئي دغورلپاره
غوره کوي اوس نوراشه ابن تیمیه رحمة الله علیه چې څومره عالم هغه تاریخ بـه
تاسو کتلی وی او له اهل السنت والجماعت سره ئي یوازی پـه (۱۷) مسئلوکی

اختلاف درلودی خوهم زموږ اکابرودکفرفتوی نه ده وربانذی کړی اوهغه نعوذ بالله کافرنه وودازموږ دمذهب څومره متفه فیصله ده چې کوم څوک پرمسلمان باندی دکافر فتوی وکړي نودمفتی حکم څه دی ؟ ابن تیمیه دشیخ الاسلام لقب لري ډیرتصانیف لری دډیروغټومفسرینواوستاد تیرشوی دی اوهغه دحنبلی مذهب پابندووکه زموږ له اکابروڅخه چاڅه ویلې وی هم هغه دهغه کاردی خوزه داوایم چې انشأ الله دقیامت په ورځ به له مااومحمدموسی صاحب څخه داوپوښتنه ونه شي چې ولې مودابن تیمیه په اړه څه نه دی ویلی اوبل دوهابیانواوابن تیمیه کوم تړاونشته چې وهابیان ابن تیمیه دځان امام یارلارښودوګڼي اوبله خبره داده چې په دی مسائلوکی یوه هم دابن تیمیه مدعی نشته که داکتاب دده په ردکی جوړشوی وای هم به سړی له مقدمې څخه پوه شی وای چې دده دعقائدوپربطلان باندی راروان بحثونه کیږي نوپه مقدمه کي دابن تیمیه رحمة الله علیه دښکنځلوڅه ضرورت وو په مقدمه کی پرابن تیمیه پیل اوکتاب پرپرتاګه ختم شوی دی . وروسته می دارساله نوره پرله واړوله چې په ډیره بې ادبي سره لیکله شوی وه دکاتب له غلطیوبغیر په ټوله رساله کی دنبی کریم ﷺ نوم مبارک په علیه السلام اوصحابه کرامونومان سپک سپک اخستل شوی وو په دې ډول (علیه السلام ،جابر ،غزالی ،ابن حجر ،قاضی ثناء الله ،حافظ برهان الدین ،عمر، ابن عمر لیث ،طاؤس ،شمس شامی اوداسی نورټول

اوبل ځای بیالیکی غوث الاعظم دستګیرشیخ عبدالقادرجیلانی رحمة الله عیله ددې رسالې په (۷۹ ) مخکې راغلی (عربی عبارة ) کان رسول الله ﷺ )

اودده ترجمه (علیه السلام به دوه رکعته الخ) دنبی کریم ﷺ اوصحابه کرامو ،تابعینو ،تبع تابعینو ، امامانو ،مجتهدینو ، فقهاؤ علماؤ نومونه ئي نیم نیم سپک سپک اخستې اوخپل نوم ئي (ابوعبدالله محمدموسی غفرالله لهما) اخیستی تاسو وګوری دتألیف اصول قیوداوشروط داب اواداب څه دی ؟؟؟ بله خبره خولاداهم ده چې په مقدمه کي ئي دایوب انصاری ﷺ حدیث نقل کړی

مسائلوکي نیت صفاکړي ځکه دین دهیچاشخصی نه ده ټول مسلمانان په خپله اندازه مسئول دی ځکه دین دټول بشریت دین دی .

ښاغلی لیکوال په پای کي لیکلی که تاسو کمښت یازیادت زماپه رساله کي پیدا کړ نوماته خبرراکړي نوزه دوروی. اوبشری تقاضاله مخې خبرورکوم چې پردی ټولوبرسیره خطې غلطی خوترحساب تیري دی آن داچې ایاتونه هم غلط لیکل شوي دی اودکتاب په پای کی دی مدعی دکاغذانوټولول دی اودلیل دی دکاغذانوپرسوزولوویلی دی باید چې اصلاح ئي کړي نورزه له محمدموسی صاحب ځخه بخښنه غواړم اودعاکوم چې لوی خدای ﷻ موږ ټولو مسلمانانوته بخښنه وکړی اودنبی کریم ﷺ سپینه لاره دی رانصیب کړی ترڅودلوی خدای ﷻ درضالاتق وګرزوامین یارب العلمین

والسلام

(دنورالقرآن اداری خادم ابوخالد مولوی عبدالاحد (مجروح)

۲۰۰۷ / دجولایي میاشت

. دهجرت مینه – پښون اباد کوټه

چې تاسو هغه وخت وژاړئ چې دين نااهلوته په لاس ورشي ، نو دازمابا‌عث شو چې داتصنيف مې وکړ محترمه ته خوپرنااهلوژاړه خوپرتابه څوک وژاړي داتاسو وګورئ چې نااهل څوک دی؟؟ اوپرچاوژاړو ؟ که محمدموسی صاحب لږ فکر وکړی چې که چيرماپه دی رساله کی داسی شی ليکلی ووچې هغه په اصل کي حديث نوو نوزه به په کوم وعيدکي راشم (من کذب علی متعمداً فليتبوأ مقعده من النار) بل ځای ليکی چې زماعمرتراوسه (۲۲) کاله دی داپخپله پرځان يوه شاهدې ده چې ماحديث نه دی ويلې سند ،دحديث نوعيت ، حديث ،راوي ،فتوی ،مفتی به ،متفق عليه ،دحديثواجازه اودارنګه نوردايوهم نه پيژنم ،کتابونه ډيردی عربی عبارة دی رانقل کوم ئي ، زه دامنم چې (والله يختص برحمته من يشاء) لکن که رساله وګورم بيابه پرده باندی رحمت څرنګه ومنم ؟هر سړی پوهيږي درسالې له نامه څخه ئي دمسائلو سهولت معلوميږي لکن په کتاب کي ئي له اهل السنت والجماعت څخه صفابريلويان جوړکړ ی چې دحاضراوناظردعقيدې خاوندان دی مسائل ئی په غريبه تعبيرکړی لکن مسائل ټول مشهوره دی

زه دعاکوم چې محمدموسی صاحب ته دی خدای ﷻ ډيرعلم ورکړی چې ښه مسائل وڅيړي انصاف وکړي تحقيق وکړي مسلمانانوته په صفاډول ددين لاری روښانه کړي اوپه اينده کي نورښه تصنيفات وکړي اوپه دي خبره بايدنه دی اونه بل څوک خپه شي ځکه اختلاف دامت دخدای ﷻ رحمت د ی زماداڅوکرښي پرتعصب نه د ی بنا ځکه زه پخپله دومره توان نه لرم چې دچاخبره رد ياتائيد کړم خوکله چې ماددي کتاب ، شرک اوبدعت مسائل ، تصحيح کوله مخته دامسئلې راغلې نودده ترخبره مې دقاسمی صاحب خبره خوښه شوه تاسو هم په دواړوخبروکي فکروکړئ زه اماده يم که ماته په دی خبره څوک ښه قناعت دشرعي دلائلو پربنياد راکړی زه حاضريم چې خپله خبره واخلم خدای ﷻ دی وکړی چې دی هم اماده شي اوهر مسلمان بايدپه دينې

بسم الله الرحمن الرحیم

**تړون:**

زه مې خپله دا پلټنه (دشرک اوبدعت مسائل) دحضرت مجدد الف ثانی احمد بن بن عبد الاحد سرهندی رح، دهند سترمحدث حضرت الامام شاولی الله دهلوی رح، حضرت مولاناشاه محمد اسماعیل شهید دهلوی رح، قطب عالم امام ربانی حضرت مولانارشید احمد ګنګوهی رح، جامع الطریقت والشریعت محی السنة حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رح، شیخ السلام حضرت مولاناسید حسین احمد مدنی رح اوحکیم الاسلام حضرت مولاناقاری محمد طیب دیوبندی رحمهم الله تعالی نومونوته په انتساب نیک مرغه کوم.

هغوئ چې خپل مخلصانه، مجددانه او مجاهدانه ژوندی دعلم الحدیث عامولو اودبدعت او غلطورواجونو ختمولو ته وقف کړی وو.

محمد رفعت قاسمی دد یوبند ددار العلوم دمدرسی خادم

د۱۴۲۴هـ ق کال دمحرم الحرام ۱۰ –

د۲۰۰۳کال دمارچ ۱۲نیټه

دجمعې ورځ.

## دليكوال سريزه :

الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على خاتم الانبياء وسيد المرسلين محمد وعلى آله واصحابه وازواجه اجمعين. اووروسته: دالله تعالى ستر احسان دى چې دمسائلو دانتخاب چې كومه لړۍ راپيل شوي وه دهغوئ اوولسم كتاب (دشرک اوبدعت مسائل) وړاندي كوم. په هغه كي:

دكفراوشرک، نذراونياز، منت، بدفالى، ماتم كول، ميلاد، تيجه، څلويښتي، عرس، صندل، قبرلمانځنه، قبرښكلول، بدرواجونه، باطل عقائد، دجاهليت رسومات اوډول ډول بدعتونو په هكله ډيرضروري مسائل راټول شوي دي. دبدعتونواورسوماتو يوه ځانګړتيادا هم ده چې دهغوئ ځانګړي بڼه نړيواله نه وي. ځكه دهغوئ بنسټ په قرآن اوسنت ايښودل شوی نه وي: دهري ساحي خلک له خپل طبيعت سره سم ځيني رسمونه رامنځته كوي داسي چې ځيني وختونه نوري ساحي لاورڅخه خبري نه وي. هلته بياخلک دځينونوروواجونوپابندي كوي. له همدي امله ئي په هره سيمه كي بيل بيل صورتونه ترسترګوكيږي. په هرحال دادالله ﷻ فضل اود دارالعلوم د محترمومفتيانو(دامت بركاتهم) دسرپرستي ثمره اونتيجه ده. ياالله ! ددي حضراتوسيوری خوله عافيت سره، سره ترډيره وخته ولري اودنورو كتابونوپه څيرداهم په عامه افكاروكي دمنلووړوګرزوي، راته داخيرت توښه ئي كړي اودبياالپاره ددينې خدمت توفيق راته راكړي. آمين ربناتقبل منانک انت السميع العليم

محمد رفت قاسمی ـ دديوبند ددارالعلوم دتدرس خادم

د۱۴۲۴ هـ ق كال دمحرم الحرام ۱۰ ـ

د۲۰۰۳ ميلادي كال دمارچ

۱۲ ادجمعي ورځ

## دفقيه النفس حضرت مولانا مفتي سعيد احمد صاحب مد ظله پالنپوري دديوبند دستر محدث تقريظ

نحمده ونصلى على رسوله الكريم .
ددارالعلوم استاد جناب مولانا رفعت قاسمي صاحب بريالى دى. الله تعالى کارته چمتو کړى دى. دهغه ځو کتابونه راخرګند شوي دي اوقدرونه ئي شوي ده. اوس نوموړي يونوى کتاب چمتو کړى دى کوم چې دده اوولسم کتاب دى. دکتاب نوم دى (دشرک اوبدعت مسائل) موضوع ئي له نوم څخه ښکاره ده. شرک دانسانانو هغه ګمراهي ده چې له هغه سره دمغفرت سوال نه پيدا کيږي. اوپه حديث شريف کي هغه په اکبرالکباير بلل شوى دى. بيا دشرک مختلف ډولونه دي: شرک په ذات کي، شرک په صفاتو کي اونور... آن دا چې ريأ اوسمع هم دشرک په دايره کي راځي له همدي امله يوه مؤمن ته ضروري ده چې هغه دشرک په تفصيل وپوهيږي ترڅوورڅخه ځان وساتي.
دمولانا قاسمى همدا کتاب انشاألله دهمدي دواړو موخولپاره بشپړاوکافى دى. که ئي لوستونکي په غورسره وګوري ډيرمعلومات به تري ترلاسه کړي. زه دعاکوم چې الله ﷻ دا کتاب هم دنوروپه څير دمنلووړوګرزوي. امت ته ئي داصلاح ذريعه اومصنف ته ئي داخيرت ذخيره وګرزوي آمين

*ددیوبند ددار العلوم دخادم سعید احمد عفاالله عنه پالنپوري ليکنه*
*د١٤٢٤ هـ ق کال دجمادى الاولى*

*پنځمه نيټه.*

# دديوبند ددار العلوم دفتاوى دمرتب حضرت مولانا مفتي محمد ظفر الدين صاحب (دامت برکاتهم) تصديق

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى
دالله تعالى لک لک ځله شکر دى چې مسلمانانو دين ژوند ته مخه کړي وه اوله ديني احکامو او مسئلو سره دزړه مينه لري او ورسره دعمل جذبه هم پيدا کيږي. په قومونو او ملتونو کي مسلمان امت ددين په ډګر کي ترټولو وړاندي دي. هرځاى عبادت ځايونه ترسترګو کيږي په رواو ناروائي نظروي. دعلماؤ په ټولنه کي هم علمي ژوند مخ په ترقي دى څو مره چې تراحکامو او مسئلوا ړه لري هغوئ ئي سره بيل کړي او دکتابونو بڼه ئي ورته ورکړي ده ترڅو دمسئلو په لټه کي ستونزي نه وي. دديوبند دار العلوم چې په اسيا بلکه په ټوله نړۍ کي ممتاز ديني حيثيت لري او هلته شپه او ورځ دکتاب او سنت زده کړه کيږي. دهغه اساتذه دتعليم او تدريس ترڅنګ دتصنيف او تاليف ذوق هم لري، دقوم او هيواد لپاره په ټولو څانګو کي دلارښووني دنده ترسره کوي. دمولانا محمد رفعت قاسمي صاحب څو جلده کتابونه چاپ او خپاره شوي دي او خلکو له هغو کتابونو څخه پوره ګټه اخيستي ده. ورسره هغه په مختلفو ژبو ژباړل شوي دي الله تعالى دي ورته داخدمت قبول کړي دامهال دنومړي نوى کتاب (دشرک اوبدعت مسائل) زما په وړاندي دى ما په خورا مينه هغه وکتى. زړه مي خوشحاله شو چې قاري صاحب له لس ګونو کتابونو څخه دامسائل يوځاى کړي دي کومه چې دشرک، بدعت او غلطو رسوماتو په هکله دي او دهري مسئلي حواله ئي هم ليکلي ده دعاده چې الله ﷻ دهغه عمر اوږد کړي او په علمي کارونو کي ورته دزيارګاللو توفيق ورکړي ترڅو په هره لاره برابر روان وي.

ربنا تقبل منا انک انت السميع العليم.

دعاغوښتونکى

محمد ظفير الدين غفرله دديوبند دار العلوم مفتي ۱۴۲۴

کال دربيع الثانى ۱۱

## دمولانامفتی کفیل الرحمن نشاط عثمانی ارشاد
## (ددیوبندددارالعلوم مفتی دحضرت مولانامفتی عزیزالرحمن (رح) لمسی)

په علمي اوکتابي کړییوکي جناب مولانامحمدرفعت قاسمي ددیوبندددارالعلوم استاذدیوه منلي مؤلف اومصنف په توګه دپیژندني اړتیانه لري. تردي وړاندي دنوموړي شپاړس توکه کتابونه دچاپ په ګینه ښکلي شوي دي. دخلکولاسونوته رسیدلي دي اوستایل شوي دي. دمولانادکتابونوځرګنده بیلګه داده چې دمستندوحوالواهتمام په نښه شوی دی. په کوم کتاب چې اعتمادزیاتیږي دهغه افادیت هم زیاتیږي. له عاموخلکوسره سره خواصوته ئي هم داګټه رسیږي چې که وغواړي دکتاب دحوالواصل مأخذته په اساني سره رجوع کولای شي. داکتاب (دشرک اوبدعت مسئلي) په خپله موضوع کي پوره اوجامع دی، شرک اوبدعت مروجه فاتحه، مروج میلاد، تیجه، څلویښتي، نذر اونیاز، تعزیه، قبرلمانځنه اونوردشرک اوبدعت په هره ګوښه داکتاب احاطه لري اودکتاب معتبري حوالي دکتاب نوره ښکلاده. نوموړي په یوه اصطلاح سمندرپه منګي کي ځای کړی، دشرک اوبدعت په هکله ئي ډیرموادراټول کړي دي پرته له شکه یې دډیروخولوتویولوثبوت وړاندي کړی دی. هیله ده چې داکتاب هم دنوروکتابونوپه څیرعام اوخاص خلکوته په یوه کچه ومنل شي الله تعالی دی نوموړي ته دنوروخوراګټوروتألیفاتودقلم څواک چاپیریال ورکړي. آمین *کفیل الرحمن نشاط*

*د۱۴۲۴ه‌ق کال دربیع الثانی ۱۳*

بسم الله الرحمن الرحيم

(إِنَّ اللَّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاءِ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَى إِثْمًا عَظِيمًا) (دالنساءسورة ۴۸ اية)

**دتفسير لنډيز:** بيشکه الله تعالی به داخبره په سزاوار کولو هم) نه بخښي چې ورسره څوک شريک وګرزولی شي بلکه دتل لپاره به ئي په سزاکي ولري) اوله دي څخه پرته چې نورخومره ګناهونه دي (واړه دي اوکه ستر) دچالپاره چې ورته خوښه ئي وي(پرته له کومي سزابه ئي) دغه ګناهونه بخښي (البته که دغه مشرک مسلمان شي نوبيامشرک پاته نه شو، سزابه ئي هم دتل لپاره پاته نه شي) او(ددي شرک دنه بخښلو وجه داده چې) څوک له الله تعالی سره بل څوک شريک ګرزوي نو هغه دلوي جرم مرتکب شو(چې دلوی والي په وجه دبخښلو جوګه نه دی).

## معارف اومسائل

**دشرک تعريف اودهغه څوصورتونه:**

(إِنَّ اللَّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ) دالله تعالی دذات اوصفاتوپه هکله چې کومه عقيده ده، دغه ډول عقيده دکوم مخلوق په هکله درلودل شرک دی: تفصيلات ئي دادي:

**په علم کي شريک ګرزول:**

يعني ديوه بزرګ، مرشداوپيرپه هکله دااعتقادلرل چې زمونږ له ټولوحالاتوهغه هروخت خبردی، نجومي يالـه کاهن څخه دغيبوخبرونه معلومول يادیوه بزرګ پر کلام فال کتل اودغه يقيني

ګڼل یا له ډیره لیري (بې واسطې) ورته غږکول او دا منل چې هغه
وربا ندې خبرشو یا د چا په نوم روژه نیول.

**مرادغوښتل ، رزق یااولادتری غوښتل**

په عبادت کې شریک ګرزول: چاته سجده کول،د چا په نوم کوم
څاروي ایله پریښودل د چا په نوم قرباني یا نذرکول،د چا په قبر یا ځای
طواف کول. دالله تعالی دحکم په مقابل کې دبل چاقول یا رسم غوره
ګڼل،د چا په وړاندې درکوع په څیر ټیټیدل د چا په نوم څاروي
حلالول،ددنیا په کاروبارکې دستور وا غیزمنل ،یوه ورځ یا میاشت
بده او سپیره ګڼل. (معارف القرآن دوهم ټوک مخ ۴۳۰)

**دتوحیدمعنی اوتعریف**

**مسئله** :- -دتوحید معنی ده،الله تعالی ﷻ په ذات او صفاتو کې
یو،کامل اوبې مثله ګڼل. په شریعت کې له توحید څخه مقصد یوازې
دحساب داهل دعرف عددي یووالې نه بلکه عرفي وحدت مراددی
او په عرف کې دوحدت مفهوم دادی چې په ذات او صفاتو کې کامل
یکتا اوبې نظردی. او څوک که قرآن دخدای ﷻ کتاب اورسول الله ﷺ
دخدای ﷻ رسول ونه پیژني هغه نعوذبالله خدای ﷻ کاذب پیژني
څکه الله ﷻ قرآن کریم خپل کلام او سیدنامحمد ﷺ اونورانبیاء هغوئ
چې یادونه ئې په قرآن کریم (او احادیثو) کې شوي ده خپل انبیاء
اورسولان ګڼي او څوک چې ددې څخه انکاروکړي دخدای ﷻ تکذیب
ئې کړی دی. څوک چې خدای ﷻ یوګڼي او ورسره ئې کاذب وګڼي
هیڅکله موحد نه شي کیدلای (یعني هغه کافردی) (امدادالاحکام ټوک ۱ مخ ۱۳۵)

**مسئله** :- په کوموشیانوچې ایمان درکول ضروري دی په هغوئ کي یوه خبره نه منل هم کفرده. مثلاً څوک الله ﷻ نه مني له حنفیانو څخه انکاروکړي یادوه درې خدایانومني. یاله ملائیکوڅخه انکاروکړي یادالله ﷻ په کتابونوکي دیوه څخه انکاروکړي یاکوم پیغمبر نه و مني یاله تقدیرڅخه منکرشي یادقیامت ورځ نه ومني یادالله ﷻ له قطعي حکمونوڅخه انکاروکړي یارسول الله ﷺ ته دراغلوخبروکومه یوه دروغ وګڼي په دي ټولوصورتونوکي کافرکیږي (تعلیم الاسلام توک ۴ مخ ۱۸)

**شرک څه شی دی ؟**

**مسئله** :- شرک دي ته وائي چې له الله ﷻ سره څوک په ذات یاصفاتوکي شریک وګڼي. په ذات کي دشریک ګڼلومعنی داده چې دوه یادرې خدایان ومني لکه عیسایان ددریوخدایانوپه منلوچې مشرک دي اواورلمانځونکي چې ددووخدایانوپه منلومشرک دي یالکه بت پرستان چې دډیروخدایانوپه منلوسره مشرک دي.

**مسئله** :- په صفاتوکی شرک دامعنی لري چې دخدای ﷻ دصفتونوپه څیرنوروته هم هغسي صفات ثابت کړي داشرک دی. څکه مخلوق ته که هغه ملائیکه ، یانبي ،وي یاشهید ،پیریاامام وي دالله ﷻ دصفاتوپه څیرنه ثابتیږي.

**مسئله** :- دشرک ډیرډولونه دي، څوپکښي دادي:

(۱) شرک په قدرت کي: معنی دالله ﷻ په څیربل ته دقدرت صفت ورکول یاثابتول. مثلاً داسي باوروکړي چې فلان پیغمبریاولي یاشهید زوی، لورورکولای شي یاکوم مراداومقصد پوره کولای شي

یامرګ اوژوند دهغه په اختیارکي دي یاهغه چاته پر ګټه اوتاوان رسولوقدرت لري .داتولي خبري شرک دي.
(۲) په علم کي شرک : یعني دالله ﷻ په څیربل چاته دعلم صفت ثابتول. مثلاً څوک داسي باوروکړي چي هغه پیغمبریاداولي دالله ﷻ په څیردی دغیب علم لري یادالله ﷻ په څیرپه زره عالم دی یازمونږپه ټولوحالاتوپوهیږي یاله لیري اونژدي شیانوخبردی داټول شرک فی العلم دی.
(۳) په لیدلو او اوریدلوکي شرک: یعنی له خدای ﷻ سره په سمع (اوریدلو) اوبصر(لیدلو) کي څوک شریک کول. مثلاً داسي باوردرلودل چي فلانی پیغمبریاپیریاولی زمونږټولي خبري له لیري اونژدي څخه اوري یازمونږټول کارونه له هرځای څخه ویني. داټول شرک دی.
(۴) په حکم کي شرک : یعني دالله ﷻ په څیربل څوک حاکم ګڼل اودهغه حکم دخدای ﷻ دحکم په څیرمنل.
مثلاً پیرصاحب ورته حکم وکړي چي دمازیګرترلمانځه وړاندي داوظیفه کوه. دی ددي حکم تعمیل دومره ضروري وګڼي چي دهغي وظیفي په ویلودمازیګرلمونځ مکروه وخت ته ورسوي یادلمانځه دقضاء کیدلوخیال ونه کړي. داهم شرک دی.
(۵) په عبادت کي شرک : یعني دالله ﷻ په څیربل څوک دعبادت مستحق وګڼي. مثلاً قبریاپیرته سجده کول چاته رکوع کول یادکوم پیغمبر، ولی یاامام په نوم روژه نیول یاچاته نذرمنل یادچاپر قبریادمرشدپر کوردکعبي په څیرطواف کول. داټول په عبادت کي شرک دی. (تعلیم الاسلام مخ۲۴-آپ کی مسائل ټوک ۱ /مخ۴۱ )

پر دي موضوع کي د تفصيل لپاره وګورئ: قرآن کريم پنځمه پاره دنساء سورة، بخاري شريف ټوک۲ مخ۳۳۶ کتاب الرقاق، مشکوة شريف ټوک۲ مخ۸۲۷، مظاهرحق ټوک۴ مخ ۳۳۴، مسلم شريف ټوک ۱مخ ۱۲، ترمذي ټوک ۲/ مخ ۱۰۳)

**مسئله**:- دشرک معنی ده، دالله ﷻ په الوهيت يا دهغه په ځانګړو صفتونو کي بل څوک شريک کول او دا جرم له توبې پرته د معافي قابل نه دی. (آپ کي مسائل ټوک۱ مخ۴۳)

**مسئله**:- دشرک خبروته نژدي مه ورځئ، د اولاد کيدلو يا ژوندی پاته کيدلو لپاره جنتر منتر مه کوئ، فال مه اچوئ، دوليانو لپاره فاتحه اونياز مه کوئ، دبزرګانو په نوم نذر مه کوئ، دبرات شپه محرم، عرفه، په تبارک ډوډئ اونورچې کوم رسومات دي هغوئ مه کوئ.
(بهشتي زيور ټوک ۷مخ۲۲)

**دشرک ډولونه**:

**پوښتنه**:- - هغه شرک چې الله تعالی ئي په هکله فرمايي(ان الله لايغفران يشرک به...الاية) حقيقت څه دی؟ آيا په داسي شرک کي کومه داسي درجه شته چې له الله ﷻ سره پکښي شريک کول دنجات منافي نه وي؟ او ځيني بيا شريک کول دنجات منافي وي؟ مثلاً يو څوک د کوم بزرګ قبر يا تعزيه يا بل څه، په خاص نيت او عقيده سجده کوي، حاجت تري غواړي يا ورباندي حلوا، ماليده يا خوږه ويشي نور بيا کومي ونې يا بت ته په همدې نيت سجده کوي، حاجت غواړي، حلوا يا نور څه ورباندي ويشي نو څه کيږي چې دخدای ﷻ په نزد دي بزرګانو دمقبوليت له امله ورته سجده يا نور څه دنجات منافي نه وي يا له ونو او بتانو سره همداسي معامله دنجات منافي نه وي؟

که داسي کیدلای نه شي اودشرک هره درجه دنجات منافی وي نوڅه وجه ده چې قبرونوته یاپه تعزیه کي سجده کول، حاجت غوښتل حلوایانورڅه وربانديِ ویشل دنجات منافی شرک نه بلل کیږي.

اوونواوبتانویانورڅه ته داسي کول دنجات منافی شرک پیژندل کیږي. حال داچې دمکي مشرکینوهم بتان تراللهﷻ رالاندي بلکه دقرب الی الله وسیله بلل. لکه چې ارشاددی (مَا نَعْبُدُهُمْ إِلاَّ لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللهِ زُلْفَى) همداسي دتعزي په نسبت دکربلادشهیدانوخواته ځي. همداسي بتان ئي همداسي بتان ئي هم دانبیاؤخواته منسوب کول. لکه کوم یوبه ابراهیم اوبل بیاادریس علیهما السلام ته منسوب کاوو. نودشرک حقیقت څه دی چې په لومړي کي پاته وي اوپه دوهم صورت کي نه.

**ځواب** :- هغه شرک کوم چې وربانديِ عدم نجات اوخلودنارمرتب دی دهغه تعریف دادی چې دخیالي په حاشیه کي له شرح مقاصدڅخه رانقل شوی دی: ان الکافران اظهرالایمان فهوالمنافق وان طرأ کفره بعدالایمان فهوالمرتدوان قال بالشریک فی الالوهیة فهوالمشرک .(ص۱۲۴) اوس پوهیږوچې دعربو مشرکینوچې دبتانوعبادت کاووااوقبرپرست مسلمانان چې قبرونوته سجدي کوي داسره فرق لري. دعربومشرکانوبه هغوئ په الوهیت کي شریک ګڼل اوپه ژبه به ئي هم داسي ویل. په دي خبره دااللهﷻ داقول دلالت کوي: (وَجَعَلُوا لِلّهِ مِمِّا ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ وَالأَنْعَامِ نَصِيبًا فَقَالُواْ هَذَا لِلّهِ بِزَعْمِهِمْ وَهَذَا لِشُرَكَآئِنَا وقال تعالی : وَجَعَلُواْ لِلّهِ شُرَكَاء الْجِنَّ وقال تعالی: وَيَجْعَلُونَ

لهٗ اَنْدَاداً) .. اوهغه خلک په دي کې تأويلونه کوي خو ورسره دتوحيد له کلمې څخه هم متوحش کيږي او وائي:
لَبَّيْکَ لاشَرِيْکَ لَکَ الاشَرِيْکاًهُوَلَکَ تَمْلِکُهٗ وَمَامَلَکَ. قبرپرست ياتعزيه پرست داسي نه دي نه هغه دتوحيد له کلمې څخه منکروي اونه ورڅخه متوحش وي. بلکه پرته له کومي استثناء الله ﷻ يوازي معبود ګڼي اوځان مسلمان بولي. هندوان خپل ديوتاګان په الوهيت کي شريک بولي. دتوحيد له کلمې څخه منکراومتوحش وي. لکه دعربو دمشرکينو حال چې وړاندي معلوم شو. نو ددواړو ترمنځ فرق شته. دقبرپرستانو اوتعزيه پرستانو شرک عملي دي اوځانونه مسلمان ګڼي خودهنودو شرک اعتقادي اوعملي دواړه دي. داهم پوهيدل په کاردي چې غيرالله ته سجده مطلقاً شرک نه ده خوبعضي صورتونه ئي دشرک امارت دي. نوردشرک حقيقت هغه دي چې پاس يادشول. اى القول بالشريک فى الالوهية قلباً ولساناً،قال فى شرح العقائدولانزاع فى ان من المعاصى ماجعله الشارع امارةً للتكذيب وعلم كونه كذلک بالادلة الشركية كسجودالصنم والقاء المصحف فى القاذورات والتلفظ بالفاظ الكفر(ص۱۴۸)
په قبرونو ياتعزيو کي سجده کول دادشرعي تکذيب نه دي.ځکه په کفاروکي دهغوئ عبادت رائج نه دي. هو دکوم شي چې په کفاروکي عبادت رواج وي هغه ته سجده کوي دکفردحکم دقضاء مستلزم کيږي. (كماصرح به فى حاشية شرح العقايد-ص مذكور)
اوکه ديانة دزړه تصديق اوايمان ته خلل نه وي نو دخداى ﷻ په نزدمؤمن دي. دعلامه ابن تيميه رحمة الله عليه په خپل کتاب (صراط مستقيم) (۱۵۰-۱۲۵) وګوري: علامه دقبرونو دتعظيم

اوسجدي په هکله سخت تهديدي بيان کړی دی خوهغه خلک
ورباندي کافراومشرک نه بولي هود مشرکانومشابه خوی ضروربولي
. په حديث شريف کي دي: (لعن الله اقواما اتخذواقبورانبياء هم
مساجد، اللهم لاتجعل قبري وثنا يعبدالخ)
فقهاؤله دي څخه قبرته دسجدي کولوحرمت استنباط کړی دی
خوچاقبرته سجده کول کفربللی نه دی. (اللهم الاان يقر بانه على طريق
العبادة وان صاحب القبرمعبوداي شريک فی الالوهية فافهم والله تعالى
اعلم.) والله اعلم ددي عباراتوتقاضادادہ چې په قبرپرستانواوتعزيه
پرستانوکي چې کوم خلک اهل قبوروياپه تعزيه کي غيبي تاثيرته
معتقدوي هغوئ مشرک دي اوکه يوازي دظاهري تعظيم لپاره هلته
سجده يانورڅه کوي اوپه تاثيري معتقدنه وي هغوئ دِعملي شرکِ له
وجه فاسق دي، کافرنه دی شيخ رحمة الله عليه دتاثيردعقيدي اونه
عقيدي ترمنځ دافرق ښودلی دی چې دځينوداسي عقيده وي چې الله
ﷻ ځيني حاصل مخلوق ته کوم چې ورته مقرب دی کوم مستقل
قدرت ورکړي چې کټه اوزيان رسولای شي اودومره مستقل وي چې
دحق په مشيت پوري موقوف نه وي لکه ځيني باچاهان چې
خپلونائبانوته خاص اختيارات ورکړي اوهغه دباچاپه منظوري
پوري بيا اړه نه لري داسي عقيده دتاثيراعتقادلري. (د
عربودمشرکانودخپلوباطلومعبودانوپه هکله همداسي عقيده وه)
دځينوداعقيده وي چې داسي قدرت کوم مخلوق په مستقل ډول نه
لري خوځيني مخلوقات دقرب اوقبول داسي درجه لري چې
دخپلومتوسلينولپاره سفارش کولای شي خوپه دي سفارش کي ورته
دګټي اوزيان رسولواختيارنه وي بلکه ګټه اوزيان يوازي الله ﷻ

رسوي خو په سفارش كي هم تخلف نه كيږي او ددي سفارش د تحصيل لپاره له هغه سره مستقله يا غير مستقله د عبادت مشابه معامله كيږي داد تاثير عقيده نه ده خوله شرعي دليل خلاف داسي عقيده درلودل اعتقادي معصيت دى او دعبادت مشابه معامله كول عملي معصيت دى او ددي مشابهت له امله په شرعي اطلاق سره دا مشرک بلل كيږي.

قال الشيخ اشرف على هذاماسنح لى والله اعلم.

ومن ههنالم يكفر مشايخناواكابرناعابدى القبوروالساجدين لهاوامثالهم لحملهم حالتهم على الصورة الثانية دون الاولى وقرينة دعوى هؤلاء الاسلام والتوحيدوالتبرى من الشرك بخلاف مشرک العرب والهندفانهم يتوحشون من التوحيدومن نفى القدر المستقله عن الهتهم وقالوا اجعل الالهة الها واحدا. والله اعلم (امداد الاحكام ټوک ۱ له ۱۱۸ بيا تر ۱۲۳ مخونه)

**غيرعادي اموراو شرک:**

**پوښتنه:-** آيا الله ﷻ انبياء ،اولياء او فرشتو ته داسي اختيار او قدرت بخښلى دى چې انبياء مړى ژوندى كړي، يا فرشتي هوا جاري كړي، باران وكړي. خود توحيد په كتاب كي دي چې ښيگڼه او بدي گټه او زيان يوازي د الله ﷻ په اختيار كي دي بل څوک دا اختيار نه لري كه هغه نبي وي كه ولى هيڅ ته د نفع او نقصان قدرت نشته او ورته منل ئي شرک دى؟

**ځواب:-** كوم امور چي په عادي اسبابو پوري اړه لري لکه دا چې څوک وږى وي او له چا څخه ډوډئ وغواړي دا شرک نه دى. نور د انبياؤ او اولياؤ پر لاس چې كوم د عادت خلاف واقعات څرگنديږي هغه معجزات او كرامات بلل كيږي ،هغه چې هرڅه كيږي د خداى ﷻ په قدرت سره كيږي. مثلاً دا چې عيسى عليه السلام مړى ژوندى كول داد هغه په قدرت كي نه ؤ بلكه د الله ﷻ په قدرت سره وو. دا شرک

نه دی. دادفرشتو حال دی چې په ډول ، ډول امورو مأموري دی. په غیرعادی کارونو کي نبی یاولی متعرف بلل شرک دی. (آپ کی مسائل ۲/ ۴۳)

**دکافراومشرک ترمنځ څه توپیردی؟**

**مسئله** :- رسول الله ﷺ چې کوم دین راوړي دي په هغه کي که له کومي خبري انکار کیږي داکفردی اوکه دالله ﷻ په ذات ،صفاتو یاکارونو کي ورسره بل څوک شریک وګڼل شي داشرک دی.

**مسئله** :- دکافراومشرک په نجس والي اوناولتیا (مرداري) کي کوم شک اوشبه نشته، دادقرآن کریم فیصله ده خودهغوئ نجاست څرګندنه دی. معنوي دی نودکافریامشرک که لاس اوخوله پاک دو ، ظاهري نجاست ورباندي نه وو له هغه سره یوځای خوړل جایزدی. درسول الله ﷺ پر دسترخوان کافرانوډوډئ خوړلي ده. (آپ کي مسائل مخ ۳۴)

**مسئله** :- هرمشرک کافردی خوهرکافرمشرک نه دی ، کافرهغه هم دی چې ددین له ضروریاتو ، قطعي نص اونورڅخه انکاروکړي خو هغه مشرک نه بلل کیږي بلکه مشرک هغه بلل کیږي چې له الله ﷻ سره څوک شریک ونیسي که هغه په ذات یاصفاتو یا افعالو کي وي. الله ﷻ دهغوئ د نه بخښلو وعده کړي ده. (فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۱۱۷)

**مسئله** :- په حدیث شریف کي دي، څوک چې چاته کافروایي ، له دي سره به یو دکفرپه وبال کي راځي. که هغه څوک چې کافرورته ویل شوی وي، کافروي خوسمه ده اوکه نه کفرو یونکی به دکفروبال په غاړه اخلي، چاته کافرویل کبیره ګناه ده. (آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۳۵۵)

**پوښتنه** :- - الصلوة والسلام علیک یارسول الله ویل څنګه دی ؟

**ځواب:-** که تاسو دژوند په ټولو کونجو کي درسول الله ﷺ دسنت دتعميل رښاخپروئ اوله سنتو سره موپه لوړه کچه اړيکي وي. ټول اعمال موپر سنت برابروي چې په پايله کي موله رسول الله ﷺ سره مينه زياته شوي وي مينه زياته شي دعشق ځاى ته ورسيږي. له دي ځايه ترمدينې منورې ټولي پردې ليرې شوي وي اوتاسو دلته ولاړياست اودرسول الله ﷺ سپيڅلي روضه وينې نوبى تکليفه واياست الصلوة والسلام عليک يارسول الله. دچاپه منع کولومه منعه کيږئ. خوکه پردې لرې شوي نه وي اوله دي ځايه موروضه په سترګونه راتله نومعلومه ده چې په مينه کي کمښت ده نوله دي ځايه ورياندي اللهم صل على محمد وعلى آل محمد (تراخيره) واياست.
تکليف وکړئ، سفروکړئ مدينې ته ولاړشي له روضې مبارکي سره ودريږي اوپه ډير آدب اواحترام سره وواياست الصلوة والسلام عليک يارسول الله له ليرې ځخه همداسي نعرې وهل بي ادبي ده. دادبزګرانوطريقه ده په قرآن کريم کي درسول الله ﷺ په هکله راځي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ) الآية.. خپل ږغ درسول الله ﷺ ترږغ مه لوړوئ. دځينوخلکوږغ قدرتاً لوړوي، په خبروکي ئي ږغ لوړيږي. همداسي آيت نازل شوچې خپل ږغ درسول الله ﷺ ترږغ مه لوړوئ (وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ)، درسول الله ﷺ په وړاندي په داسي زورسره خبرې مه کوئ لکه ترخپل منځ چې ئي کوئ، هسي نه چې ستاسواعمال ضائع شي اوتاسوورباندي ونه پوهيږئ کوم کسان چې درسول الله ﷺ په حضورکي په ټيټ ږغ خبرې کوي دهغوئ زړونه امتحان کړی شوي دي دهغوئ په زړونو کي تقوی

موجوده ده. ددي آيت ترنزول وروسته ځينوصحابه وو داسي خبري كولي چې د بيا بيا پوښتلوضرورت به وو ، هغوئ ويريدل چې درسول الله ﷺ په حضوركي په لوړږغ ږغيدلو به مواعمال ضائع شي.
(إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ) كوم خلک چې ليري ولاړوي اودرته نعري وهي هغوئ قرآن كريم بي علمه بللي دي.(أَكْثَرُهُمْ لاَ يَعْقِلُونَ) له دي ځايه يا له بل ځايه نعري وهل يارسول الله ! داسي نعري وهونكي قرآن ناپوهان بللي دي. نوله ليري نعري وهل ،ږغكول،داډول الصلوة والسلام ويل لكه دښوونځئ ماشومان چې تراني وائي يوتن يولفظ وائي بيائي ټول يوځاى وائي. داغلطه لاره ده . نه له قرآن څخه ثابته ده اونه له حديث شريف څخه ،نه صحابه كراموداسي كړي دي اونه مجتهدواومامانو. كه درودوايا ست په يوه ګوښه كي كښينئ په پوره توجه سره، په خاطرجمعي سره چې څومره غواړئ هغومره ووايا ست. څوک منع نه كوي. كه موڅوک منع كوي دهغه خبره خوو حي نه ده مه منع كيږئ خودومره خبره ده چې دخطاب په صيغه سره صلوة په زوره ويل ،په ګډه سره ويل داغلطه طريقه ده اوداسي فكركول چې رسول الله ﷺ په خپله دلته تشريف راوړي دالاډيره غلطه ده. اللهم صلى على سيدنامحمد مناسب دي اودرسول الله ﷺ دمحبت په جوش كي راتلل عقائدمه خرابوئ دعقائدوسم ساتل ضروري دي. په جوش اومينه كي راتللو خوصحابه وو داسي څه كړي نه دي چې درسول الله ﷺ له شان سره منافي وي يابه عقائدوته كومه خطره وه. دعقيدي ساتل خوراضروري دي. دجوش اوميني نتيجه خوپه يهودانوداشوه چې عزير ﷺئي دخداى ﷻ زوى وباله اونصارى ووعيسى ﷺ دخداى ﷻ زوى وباله بت پرستان چې څومره

بتان لمانځي هغه ټول دجوش او محبت نتائج دي. له همدي امله په اسلام کي دميني اوجوش حدود قائم اوثابت دي او په هغو حدودوکي مقيد دي. له همدي کبله دعقائدو تصحيح خورا ضروري ده. دخلاصون مدار عقيده ده. دايمان مدار دعقيدي په سموالي دي. که عقيده غلطه شي ايمان خرابيږي نجات به نه وي.

(دديوبند دارالعلوم دمفتي محمود احسن صاحب ملفوظات دانور حواله اکتوبر ۲۰۰۲)

**مسئله** :- څوک که د رسول الله ﷺ له روضي سره نژدي درود وائي هغه ﷺ ئي اوري (ځکه په قبر کي هغه برزخي حيات لري)

که څوک ليري درود وائي هغه ملائکي ورته رسوي (په خپله ئي نه اوري داله حديث شريف څخه ثابت دی) نوله ليري که په دي نيت اوعقيده چي صلوة وسلام ورته ملائکي رسوي ووائي صحيح دی. دالکه څوک چي خط استوی اوورته دخطاب لفظ وليکي پوهيږي چي داخط په پوست (ډاک) کي ورته رسيږي. دا صحيح ده. که داباور ولري چي رسول الله ﷺ ئي بلاواسطي په خپله اوري اوهرځای حاضر او ناظروي داعقيده دحديث شريف اوشريعت خلاف ده. هرځای له الله ﷻ پرته بل هيڅوک حاضر او ناظر نشته. له داسي عقيدي لرلوڅخه توبه کول فرض دی ځکه داسي عقيده لرل شرک ده. داچي عوام په دي توپير نه پوهيږي نو دخطاب دصيغي له استعمال څخه ئي منع کول په کار دي. (فتاوی محموديه ټوک۲ مخ ۷۳)

**مسئله** :- دمصيبت اواړتيا پر وخت انبياؤ يا اولياؤ ته له ليري دمرستي لپاره ځيني کسان نعري وهي داعقيده هم داسلام خلاف ده. داسي عقيده چي د رسول الله ﷺ په هکله کفر ده نوله نورو سره به څرنګه صحيح وي يارسول الله ﷺ په دي عقيده ويل چي رسول الله ﷺ هرځای

حاضر دی ، ناجائز دی او که داعقیده ولري چې ملائکې ورته داخبره رسوي بیا جوازلري. خو دعوامو په عقائدو کې له دې څخه فساد پیښیږي نو منع کول ئې ضروري دی.

**مسئله** :- په لمانځه کې أَيُّهَا النَّبِيُّ ویل شرعاً ثابت دی نو داویل جائز دی او داعقیده لرل دی چې ملائیکې ورته درود او سلام رسوي.
(فتاوی محمودیه ټوک۵ مخ۲۷۶ -بخاری ټوک۳ مخ۳۲ او مظاهرحق)

**یارسول الله ﷺ ویل څنګه دی**

**مسئله** :- په یارسول الله ویلو کې ډیر تفصیل راغلی دی ،ځینې طریقې جائز او ځینې ناجائز(ناروا ) دي. بیشکه رسول الله ﷺ حیات دی. که ئې له قبر سره درود او سلام وویل شي په خپله ئې اوري او که لیرې وویل شي فرشتې ئې ورته رسوي او دویونکې نوم ورته وائې او رسول الله ﷺ ورته ځواب وائې (دا په حدیث شریف کې ثابت دی ) داسې که لیرې وي او که نژدې یارسول الله ویل صحیح دی خو داعقیده لرل چې له لیرې څخه ئې د الله ﷻ په څیر رسول الله ﷺ په خپله اوري صحیح نه ده. همداسې په التحیات کې (السلام علیک ایها النبی )ویل کوم دشک ځای نه دی. د تلاوت په وخت کې که (یاایها المزمل )د عبادت په توګه ویل کیږي کوم حرج پکښې نشته. خو دادهغه د حاضر او ناظر بللو لپاره دلیل ګرزول ناپوهي ده. که حاضر او ناظر و نه بلل شي او یوازې د مینې د جوش په وخت کې یارسول الله وویل شي جوازلري. کله کله د ډیرې مینې یا زیات غم له امله د حاضر او ناظر له عقیدې پرته غائب ته د(نداء ) لفظ ویل کیږي داهم جوازلري. کله بیا په تخیل کې په شاعرانه او عاشقانه ډول خطاب کیږي په دې کې هم کومه ستونزه نشته (شاعران دیوالونو ته هم خطاب کوي ) دایوه

محاوره ده دحاضراوناظرعقيده پکښې نشته. البته له صلوة اوسلام څخه حاضراوناظر بلل اودحاجت غوښتلو په ډول په ناسته ولاړه کي يارسول الله ! يارسول الله ! ياعلي ! ياغوث ! اونور.... ويل بيشکه ناجائزاومنع دی. لنډه داچې پرته له الله ﷻ څخه بل چاته که هغه نبي وی ياولي دحاضراوناظراوحاجت پوره کولوعقيده درلودل يوه باطله اوغلطه عقيده ده. حاضراوناظريوازي دالله ﷻ ذات دی.

مقصد دادی چې يارسول الله !ياغوث ! اونورپه دي عقيده ويل چې دالله ﷻ په څېرداحضرات هم هرځای حاضراوناظردي يازمونږ خبري اوري اوحاجت موپوره کوي دانا جائزدی. که په خپله داسي عقيده ونه لري اودنورودعقيدي همداسي انديښنه پيداکيدله بياهم ناجائزدی چې دهغوئ په وړاندي همداسي الفاظ وويل شي.

(فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۳۴۸ په حواله. مشکوة شريف ټوک ۱ مخ ۴۱ اوفتاوی محموديه ټوک ۱۵ مخ ۹۰)

**مسئله** :- ددیوبند دعلماؤ رحمة الله عليهم عقيده داده چې درسول اللهﷺ دمزارزيارت کول افضل المستحبات بلکه واجب ته نژدي ، ډيرفضيلت اودلوی اجرسبب دی. مولانارشيداحمد گنگوهی رحمة الله عليه وائي چې که مدني ته دتللواراده وي غوره داده چې درسول اللهﷺ دروضي دزيارت نيت وکړي.

(فتاوی رحيميه ټوک ۱ مخ ۲۲ دزبدة المناسک په حواله مخ ۱۱۳)-

**ديارسول الله ! ويلوتفصيل** :

په قرآن کريم کي په ډيروآياتونومبارکوکي په قطعي اوواضح ډول داامورثابت دي: يوداچې الله ﷻ هغه يوازينئ هستي ده چې هروخت هرځای موجوددی. نه يوازي داچې زمونږغږاوري بلکه زمونږدزړه غوښتنه هم اوري اودذهن اوزړه په هرکيفيت موخبردی. بله داخبره

چې ټول انبیاء او اولیاء بندګان او بشر (انسانان) دي. په هغوئ کې کوم مافوق البشر طاقت او صلاحیت نشته. له هغوئ څخه چې کوم معجزات او کرامات ښکاره کیږي، هغه هغه وخت وي، کله چې ئې الله ﷻ مناسب وبولي او اراده ئې وکړي. د رېښتیا خبره داده چې له بلي هستي سره داسي صلاحیت فرضول چې هغه دالله ﷻ ځانګړتیاده، داشرک ده. الله ﷻ یوازي په ذات کې واحد نه دی بلکه په صفتونو کې هم واحد دی. هرځای هرڅه اوریدل او فیصله کول دادرې خبرې قطعي دي. نورولي څوک دهغه خلاف عقیده لرلای نه شي. هر استدلال رد کیږي خو قرآن څوک ردولای نه شي. ښه پوه شئ چې پرته له الله ﷻ څخه بل څوک حاضر او ناظر نشته او یارسول الله! په دې عقیده ویل چې رسول الله ئې پرته له ملائیکو اوري. دادشرک یو خور اناوړه ډول دی. الله ﷻ مودې وساتي (محمدرفعت قاسمی)

**یاشیخ عبدالقادرشیئاً لله ویل:**

**پوښتنه**:- یاشیخ عبدالقادرشیئاً لله لیکل او دوظیفې په ډول ویل څنګه دی؟

**ځواب**:- په دې جمله کې له سید عبدالقادر صاحب څخه دالله ﷻ په واسطه څه غوښتل کیږي. سوال له هغه څخه دي او الله ﷻ وسیله بلل کیږي. داطریقه غلطه ده، سرچپه ده اصل باید غوښتل له خدای ﷻ څخه وي او وسیله یو مقبول بنده جوړول خو دلته معامله سرچپه ده او وظیفه ئې ناجائزده. (فتاوی محمودیه مخ ۱۸۱ او ۱۹۸)

**مسئله**:- یاده شوې وظیفه ویل او داعقیده لرل چې شیخ عبدالقادر رحمة الله علیه هرځای حاضر او ناظر، عالم الغیب او نور شرعاً په هیڅ

دول جائزنه دی. داسي عقيده لرل حرام دی بلکه شرک دی ځکه داصفات الله ﷻ لره ځانګړي دي. داصفات بل چاته ثابتول دفقهاؤ رحمة الله عليهم په نزد کفر دی. نوهمداسي وظيفه ليکل او په مسجد کي ځوړندکول هم جوازنه لري. په مسجد کي په ديوال کي ئي کيندل هم ناجائزدی اوهغه نړول اجرلري. دياشيخ عبدالقادر! پرځای دي يا ارحم الراحمين ويل کيږي. هغه چې دقدرت په قبضه کي يې شيخ عبدالقدر رحمة الله عليه بلکه ټول عالم دی. دشريعت په خلاف عقيده لرونکی دي په غوره تدبيرسره وپوهوي اوسمي لاري ته دي برابرکړي. (فتاوی محموديه ټوک۲ مخ۱۷۵ ونظام الفتاوی ټوک۱ مخ۵۲)

ياعبدالقادرشيأ لله وظيفه کول شرک دی. که کله هم سچه اسلامي حکومت قائم شي داسي وظيفه کوونکی به مرتداعلان کړي دتوبي غوښتنه به تري وکړي، که ئي توبه ونه کړه نوغاړي به ئي ووهي. که غلط تعليمات اوزده کړي چاپ نه کړای شي نوخوراناپوهه کس به هم داسي وظيفه نه کوي خودپيري اومريدي غلطوطريقواوخودساخته تصوف دساده زړيواومتدينومسلمانانوپر دماغونوتيری کړی اودهغوئ عقلونه ئي خراب کړي دي دايادولرئ چې دقيامت په ورځ کله حساب کتاب وي زمونږعقائداواعمال به دقرآن اوحديث شريف په تله تلل کيږي هلته به نه پيرپه ښه راځي نه فقيراوشيخ عبدالقادر رحمة الله عليه به په صافوتوروکي وائي چې ای الله! په دي کي زماخطا نشته. زه په قبرکي پروت وم اوپه ژوندمي دتوصيې تعليم ورکړی دی. دافساد شيطان پيښ کړی دی. که ناپوهه خلک دشيطان په مکرغوليدلی اوزه ئي دستګيراوحاجت روابللی يم نوپه دي کي زماڅه ګناه ده؟ ماته مغفرت وکړي اوله دوئ سره هغه معامله وکړي

چې تـه ئـي غـواړي. اوداهـم پـه يـادولرئ چـې ترشـاه صـاحب ستر، سترصاحبان که کوم داسي فعل یاقول ولري چې د قران اوحديث شريف خلاف وی، له هغه څخه به پوښتنه کيږي. دخدای ﷻ په عدالت کي تول بند ګان مسئول دي ترانبياؤپوري به څوک له ويري څخه بي نيازه نه وي. (محمد رفعت قاسمی)

## دياغوث الاعظم المدد نعري وهل

**پوښتنه** :- و امام حسين ﷺ ته (یا حسین مددکن) (یاحسین/غثنی) نعري وهل، مرسته غوښتل، روزي اويااولادغوښتل جائزدي اوکنه؟ ياغوث الاعظم دستګيراغثنی باذن الله ياشيخ محی الدين مشکل کشابالخيراياداسي ويل جائزدی؟

**ځواب** :- له حسين ﷺ څخه مدد غوښتل اونعري ورته وهل ياوظيفه شرعاً جائزنه دی، منع دی. وسيله ګرزول جائزدی خودائي طريقه نه ده په داسي طريقه سره دنورو عقيدي هم خرابيږي. نوپريښودل ئي ضروري دی خدای ﷻ پريښودل اوله نورواولادغوښتل، دناروغئ شفاغوښتل، دقبرونوله اهل څخه روزي غوښتل، اوپه دعوه کي دکامیابئ غوښتل ناجائزدی بلکه يومشرکانه فعل دی ځکه عبادت اودحاجت غوښتنه يوازي دالله ﷻ حق دی.

(فتاوی رحيميه توک ۱۰ مخ ۴۷ اوتوک ۱ مخ ۱۰۲ دمشکوة شريف مخ ۴۵۳ په حواله)

**مسئله** :- له دي اعتقاداتواواعمالوسره ايمان سلامت نه پاته کيږي داعقيده (له غوث الاعظم يانوروڅخه غوښتنه) فقهاوو کفربللی دی.

(فتاوی محموديه توک ۱ مخ ۱۲۳)

**مسئله** :- خداى ﷻ پريښودل د قبرله اهل څخه اولاد غوښتل، د ناروغئ شفا غوښتل اورزق طلب کول مشرکانه فعل دى. (فتاوى رحيميه ټوک ۳ مخ۴ فتاوى رشيديه مخ۱۴۲ وفتاوى محموديه ټوک۱ مخ۱۰۸)

**مسئله** :- په هديره کي د ولاړي په حال قبلي ته مخ اړول، لاسونه پورته کول اودعاکول له ادابو څخه دى سنت دى، بدعت نه دى، همداشان په کښينا ستلوپرته له لاس پورته کولو هم دعاجائزده. خوپه دعاکي دي داسي حالت نه غوره کيږي چې کتونکي ته داشبه پيداشي چې له قبرڅخه دحاجت پوره کول غواړي له همدې امله که دعاکوي، لاس پورته کوي نود قبرلورته دي مخ نه اړوي.
(فتاوى رحيميه ټوک ۳ مخ۱۲ دمسلم شريف په حواله)

**مسئله** :- مراداوحاجت يوازې له الله ﷻ غوښتل کيږي له کوم مرحوم ولي نه دمدداومرستي لپاره دغ کول منع ده. که داباوروليږي چې که زه له هرځاى څخه نعري وهم ولى (بزرګ) ئي اوري اومدد کولوته راځي داعقيده په قطعي ډول غلطه ده اوداسلامي تعليماتوخلاف ده اوډيره خطرناکه ده. (فتاوى محموديه ټوک۱ مخ۱۱۱)

**ديوه بزرګ په نوم ويښتان پريښودل**

**پوښتنه** :- : دلته دستوردى چې دماشوم دسرويښتان نه خريبي بلکه دبزرګانوپه نوم تريوه وخته ويښتان پريږدي پنځوس شپيته کسان يوځاى دبزرګ مزارته ځي اوويښتان خريبي ددي شرعي حکم څه دى؟

**ځواب** :- داغيراسلامي طريقه ده. داهل سنت والجماعت دعقيدي اوطريقي خلاف ده، بدعت ده. اسلامي طريقه داده چې اوومه ورځ دماشوم عقيقه وشي. ددي پرځاى دکوم بزرګ په نوم ويښتان

پرېښودل او دهغه مزارته ورتلل هلته هغه خرېيل د اسلامي طريقې خلاف بد بدعت او مشرکانه فعل دی. (فتاوی رحيميه ټوک۳ مخ۱۹۲)

**مسئله** :- دبزرګانو په نوم وېښتان پرېښودل بيا په ټاکلي وخت دربارته ورتلل او هغه خرېيل حرام او شرک دی. (فتاوی محموديه ټوک۱ مخ۲۰۹)

**علی مشکل کشاويل:**

**پوښتنه** :- حاجی امدادالله مهاجرمکی رحمة الله عليه په شجره او دحضرت نانوتوی په قصيده کي يودوه ځايه داسي دی چې له بريلوی حضراتو سره ناسته نه ده پکارځکه هغه زموږ دځوانانو ذهن خرابوي، دهغواشعارومطلب اوحکم څه دی؟

جواب (۱) : داصلاحاتو په فرق سره دمفهوم فرق کيدلای شي .(مشکل کشا )دفارسی لفظ دی اومعنی ئي ده (دمشکلاتو، مسائلوحل کونکی) اودالقب علی ﷺ ته عمر ﷺ ورکړی دی. په عربي کي ددي ژباړه ده: (حل العويصات) په ادوکي ئي نن سبادمشکل کشامعنی په دي پيژندل شوي ده چې (دخلکو د مشکلوکارونو کوونکی) خودحاجی امدادالله په شعرکي ئي دمشکلومسئلو دحل کوونکي هدف دی نه دامعنی.

(۲) : دنانوتوی رحمة الله عليه په قصيده کي درسول الله ﷺ له روحانيت څخه استشفاع ده (کرم احمدی) ته خطاب دی او داددنيادکارونولپاره مددغوښتل دی. بلکه په اخيرت اودنياکي په دين باندي داستقامت ده. لکه څنګه چې مينان خپلومينوته خطاب کوي، په داسي حال کي چې هغوئ پوهيږي چې ددوئ ږغ دهغوئ ترږغونو نه رسيږي اوريښتيائي دهغوئ اوريدل هم مقصد نه

وي. دا د مینې دا ظهاریوه لاره ده. همداسې دلویانو په وینا کې چې رسول الله ﷺ ته خطاب کیږي هلته دعشق او مینې او دشفاعت دغوښتنې مقصدوي نه داچې دخپل ژوند په کارونو کې ورځخه مرسته غواړي. (آپ کي مسائل تو ک۸ مخ ۲۷۵ او اختلاف امت اور صراط مستقیم)

**مسئله** :- (مشکل کشا، یوازې دالله ﷻ ذات دی. دنورو (علی ؓ یانورو) مشکل کشا بلل هیڅ نه دی. علی ؓ چې څوک مشکل کشابولی هغه دحل المعضلات ژباړه ده چې دهغه په شان کې راغلې دی. مفهوم ئې دانه ده لکه څنګه چې په عوامو کې مشهوره ده. بلکه معنی ئې داده چې هغه به مشکلې دعوی او معاملې به اسانه سره فیصله کوي. او دا معنی صحیح او سمه ده. (نظام الفتاوی تو ک۱ مخ۸۸)

**مسئله** :- دستونزو دحل لپاره علی ؓ ته رغ کول (یا علی مشکل کشاویل) او دا عقیده درلودل په همداستونزې حل کیږي داغلط دی او کفرته ورته دی له دې څخه توبه او ورسره احتیاط لازم دی.
(فتاوی محمودیه تو ک۱ مخ ۸۸)

## اولیاء حاجت پوره کوونکې پیژندل

**مسئله** :- ډیر عوام اولیاء الله حاجت روا او مشکل کشا پیژنئ په دې نیت فاتحه وائي اوزاریٔ کوي چې په کارونو کې موپرمختګ وشي، مال او اولاد موزیات شي، رزق مو پراخ شي، داولاد عمر مو اوږد شي. په دې هرمسلمان پوهیږي چې داسې عقیده درلودل شرک دی. په قرآن کریم کې ډیرځایونه ددې عقیدې ابطال شوی دی. ځینې خلک یې په زور سره داتأویل کوی چې موږ قادر مطلق او عالم الغیب یوازی الله ﷻ پیژنو خو دبزرګانو توسل جائزاو ثابت دی؟

ددي جواب دادی چې دتوسل معنی دانه ده چې وسائلو ته دتکوین په کارخانه ددخل کولوحق ورکړي که هغه فاعل پیرتئ داسي چې هغه ته الله ﷻ کارخانه سپارلي ده یاداسي چې فاعل خوالله ﷻ دی خوداحضرات که عرض وکړي نوالله ﷻ زمونږ کارونه ضرورپوره کوي داسي فعل یومحض شرک دی.

دعربو دمشرکانوعقائدهم داسي ووچې اصنام (بتان ) اوارواح به ئي فاعل بالاصالة نه بلل بلکه داسي کارکوونکي به ئي بلل چې په آیت (ولئن سألتهم ) کي ورته اشاره شوي ده:

(که ته له خلکوپوښتي چې اسمان اوځمکه چاپیداکړي دي ،هغوئ به ووائي الله ﷻ پیاکړي دي) ددوئ پر عقائدوهمدا آیت شاهددی.

دلته په یوه وړه خبره پوهیدل ضروري دی چې څوک له چاڅخه دڅه شی توقع لري داپوهه ورته ضرورده چې:

لومړی: آیاهغه شخص ته دده داړتیاعلم شته ؟

دوهم: آیاله هغه سره داڅه موجوددی ؟

دریم: آیاهغه ئي دورکړي قدرت لري؟

څلورم: آیاترهغه بل ځواکمن څوک شته چې داورکړه منع کړي ؟

پنځم: له هغه سره داذرائع هم شته چې هغه څه ده ته ورسوي؟

اوس فکروکړئ. څوک چې له بزرګانوڅخه داولاد ،رزق یابل څه دورکړي هیله او توقع لري. له غوښتونکي دي وپوښتل شي چې دا اولیاء ستاسوله حاجت څخه څنګه خبرتیالري؟ که ووائي چې اولیاؤته دهرڅه معلومات شته دایوڅنګه شرک دی. که ووائي چې الله ﷻ هغوئ ته دهرڅه معلومات ورکوي. داکه څه هم محال نه ده خوضروري هم نه ده. پرته له شرعي دلیل څخه دکوم ممکن امردواقع

کيدلوباوردرلودل ييوازې ګناه اودزړه دروغ دي. ځکه الله ﷻ په قرآن کريم کې فرمائي (په کومه خبره کې چې درته علم نه وي په هغې عمل مه کوه ) بيالـه اولياؤسره زرق اواولادځنګه راتـول شوي دي. هغـه نعمتونه چې لـه اولياؤسره دي هغـه نورځه دي داولاداوروپيو کوټي ورسره نشته. بياکه پـه همدا قدرت دوئ تـه څوک قائل شي بياهم شرک دی اوکه ووائي چې الله ﷻ ورتـه همدا قدرت ورکړي دي دلتـه نودشرعي دليل اړتياده ،له هغه پرته داعقيده هم باطله اويوازې يوه افتراء اوبهتان دی. په قرآن اوحديث کې راځي چې:
(لاأملکُ لِنَفسی نَفعاً وَلاضَراً ) له دي څخه دنوروپه هکله هم دقدرت نفی کيږي. نوځنګـه معلوميږي چې الله ﷻ هغـه ذات چې احکـم الحاکمين دی هيڅکله به دامنع نـه کړي چې ځنګه داکسان غواړي هغسې وکړي. اوکه څوک داسې وايي چې که اولياء هرڅه غواړي هغـه کولای شـي داخودټول قـرآن کـريم تکـذيب دی. نوهغـه ذرائـع معلومول په کاردی چې اولادځنګـه ورکړي اوځنګـه داورسره شته.
اوکـه څـوک داوائـي چـې دقبراهـل دعـاکوي اوالله ﷻ ئـي معنـی اوهغسي کوي. ددي جواب خودادی چې ددعالپاره خولومړی علم ضروردی اودي تـه کوم دليـل نشته بياکـه اطلاع ولـري آيادهغوئ ددعاکولودليل شته ؟ که دعاهم وکړي آيادمنلودليـل ئـي شتـه ؟ لنډه داچې دتوسل طريقه دانه ده. خوهغه ډول چې عمر ﷺ دعباس ﷺ پـه توسـل دبـاران غوښـتنه کولـه هغـسي صـحيح ده. کومـه چـې دناپوهانوعقيده ده هغه شرک دی.

داخبره یادولرئ. هغه صفات چې الله ﷻ ته ځانګړی دی او عقلاً اونقلاً ثابت دی که همدا کمالات دبل لپاره ومنل شي اوورباندي عقیده ولري دااعتقادي شرک دی. کوم افعال چې الله ﷻ ته خاص دی هغه بل چاته منسوبول «شرک فی العمل» دی.
که داقاعده مراعات شي انشاألله څوک به په بلانه اخته کیږي.
(اصلاح الرسوم. اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه)

**بزرگان مختارکل بلل**

**مسئله** :- نن سباپه ډیربښت سره دمسلمانانو عقیدي هم خرابي دی، بزرګان مختارکل ګڼل دغیرمسلمانانو عقیده ده اودادمسلمانانو عقیده هم ګرزیدلي ده. څونه سترظلم دی. په دي پوهیدل ضروري دی چې کوم بزرګ دبنده په صفت وپیژندل شي خوداسي معامله ورسره وشي لکه له خدای ﷻ سره چې کیږي داهم په شرک کي داخل دی. (انفاس عیسی مخ ۵۵۲)

**مسئله** :- دبندګانو په هکله که داعقیده وي چې الله ﷻ هغوئ ته اختیارورکړی دی، چې هرڅه غواړی هغه کولای شی اودالله ﷻ (مشیت) ته اړتیانه لری یعنی داعقیده وی کوم بزرګ که کوم کارکول غواړی اوالله ﷻ نه دهغه کارمخه نیسي اونه ئي اراده کوي په داسي وخت کي که هغه بزرګ غواړي هغسي کولای شي. دایقیني کفراوستر شرک دی. (اغلاط العوام مخ ۲۴)

**مسئله** :- که دکوم بزرګ په هکله داعقیده وي چې هغه دالله ﷻ مشیت ته خواړتیالري اودڅه اجازي اړتیائي هم شته خودده دغوښتلو په وخت کي ورسره دالله ﷻ اراده هم کیږي، داکه کفراوشرک نه دی خوکذب فی الاعتقاد، معصیت اوشرک اصغردی. (ماثرحکیم الامت مخ ۱۷۲)

**مسئله** :- ځیني ناروغان یادهغوئ خپلوان په صدقه کي یوه غلطي کوي چي دکوم مرحوم بزرګ په نوم څه پخوي بیائي ویشي یائي خوري اوباورئي داوي چي هغه بزرګ خوشاله کیږي اومرسته به وکړي داسي عقیده لرل شرک دی.

**مسئله** :- ځیني کسان بیادمرستي پر ځای دهغوئ په دعاباورلري هغه داسي چي دهغه دعانه ردیږي داسي عقیده لرل هم دشریعت خلاف ده (اغلاط العوام مخ۲۳ اصلاح انقلاب مخ۲۴ مخ په حواله)

**انحضرت ﷺ حاضراوناظرګڼل**

**پوښتنه** :- دزید عقیده ده چي الله ﷻ رسول الله ﷺ ته تصرف قدرت ورکړي دي چي په نړئ کي هرڅه کولای شي. او کله چي وغواړي دالله ﷻ په حکم تشریف راوړلای شي. زید وائي زه رسول الله ﷺ حاضراوناظرګڼم. ځیني خلک وائي چي په زید پسي لمونځ کول جائزنه دی ددي وضاحت راته وکړئ اوداهم راته ووایاست چي زید مسلمان دی او کنه؟

**ځواب** :- الله ﷻ خپل حبیب ته هغه مقام ورکړی دی چي دبل چانشته .الله ﷻ چي څنګه وغواړي اوچیري وغواړي رسول الله ﷺ رسولای شي اوچي څه وغواړي په هغه ئي خبروي نوپه دي اعتبارحاضراوناظردرسول الله ﷺ صفت نه دی. حاضراوناظرهغه ذات دی چي هرځای ،هروخت اودهرشي په هکله حاضراوناظروي اودایوازي دالله ﷻ صفت دی. زید چي کوم تأویل کوي ددي تأویل په اعتباردالله ﷻ صفات نوروته ثابتوي په دي کي دعقیدي دخرابیدلو قوي اندېښنه ده. په تأویل سره پر زید باندي دکفرحکم نه

کیږی خو دا اطلاق ضلال موجب بلل کیږي. زید ته له دي فکر څخه گرزیدل لازم دی ترڅو ا گرزیدلی نه وي هغه دي دلمانځه امام نه جوړیږي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۱۰۸)

**مسئله** :- علم غیب چې په ګلي توګه کومه ذره ورڅخه پټه نه پاته کیږي بلکه هرڅه هروخت ورته معلوم وي دادالله ﷻ دذات ځانګړتیاده. هرچیري حاضراوناظراوله هرڅه څخه باخبردالله ﷻ خاص صفت دی. کوم نبی یاولي یاملکه ورسره شریک نه دي. نوبل څوک په دي صفت کي ګډول اوباورکول دشرک عقیده ده.

(فتاوی محمودیه ټوک ۱۰ مخ ۲۱) (تفسیرابن کثیرسورة نساء بخاری شریف ټوک ۲ مخ ۴۵۲)

**مسئله** :- دچاچې داعقیده وي چې رسول الله ﷺ حاضراوناظردی یارسول الله ﷺ علم غیب لري. دادشرک عقیده ده له دي څخه سمدستي توبه کول ضروردی. که نه په هغسي پسي لمونځ کول تحریمي مکروه دی. (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۹۴) (بخاری شریف ټوک ۲ مخ ۱۹۵. مشکوة ټوک ۱ مخ ۳۷۲ اوکفایت المفتی ټوک ۱ مخ ۱۲۴)

**یادونه** : فرشتو، نبیانو یاولیانوچې دغیب په هکله کومي خبري کړي دي هغه اطلاع علی الغیب دی. اوعالم الغیب له الله ﷻ پرته بل څوک نشته. زمونږ عقیده اوایمان دی چې دځمکواواسمانونو په هستوګنوکي ترټولو ډیرعزت رسول الله ﷺ ته ورکړی دی اوترټولو درسول الله ﷺ مرتبه لوړه ده خوعالم الغیب له الله ﷻ څخه پرته بل څوک نشته هماغه یوازنی ذات دی. *(محمدرنعت قاسمی)*

**ایارسول الله ﷺ بشرنه دی ؟**

**مسئله** :- درسول الله ﷺ اونوروانبیاؤبشروالی قطعي دی. له قرآن اوحدیث څخه ثابت دی. له دي څخه منکرله قرآنی نص اوحدیث څخه

منکردی. دبدعت اهل درسول الله ﷺ له بشریت څخه منکردی حال داچې په قرآن کریم کي دهغه دبشریللو څرګند تیاپه وارو ارسره شوي ده. رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: هغه خپل ځان ته بشروایه ترڅودرسول الله ﷺ دبشري حقیقت په هکله امت ته علم وي اودعیسایانو په څیر په الوهیت دهغه دګډ ګنلو په ګمراهي کي اخته نه شي (قل انما انا بشر مثلکم) ډیرځایونه همداسي الفاظ راغلي دي. په مشکوة (ټوک۲ مخ ۲۷۹) کي راځي چې رسول الله ﷺ یوځل په لمانځه کي سهو شوئي فرمایل: زه هم بشر(انسان) یم. لکه تاسو چې خطاء کیږئ، زه هم سهو کیږم، زه سهو کیږم تاسوئي ماته رایادوئ.

له قرآني ایاتونو، نبوي حدیثونو او دیني مشرانو له ویناوو څخه ثابته دی چې رسول الله ﷺ بیشکه بشراو انسان دی. نو څوک چې درسول الله ﷺ په بشریت قائل دي هغه ته کافر ویل، له اسلام څخه وتلی ګڼل غلطه او باطله خبره ده. دبغداد مفتی، علامه په خپل تفسیر روح المعاني کي فتوی نقل کړي ده چې په هغي کي ئي هغه کسان کافر ګڼلی دی چې درسول الله ﷺ له بشریت څخه انکار کوي. ځکه دهغه ﷺ بشربلل دایمان صحت او داسلام له شرطونو څخه دي.

(دروح المعاني تفسیر ټوک ۲ مخ ۱۰۱)

رسول الله ﷺ بشر دی خو تر ټول بشریت ئي مرتبه لوړه، افضل، اکمل، اقدس او اطهر دی په هرحال لکه څنګه چې درسول الله ﷺ بشروالی منل دایمان خبردی همداسي ترهر بشرئي پورته او اقدس منل هم ضروري دی. (فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۳۹۵ دبخاری ټوک ۲ مخ ۲۳۲ او ۱۰۶۲ دعیني اوشرح المعاني الاثار په حواله)

**دسلام ویلوپه مهال درسول الله ﷺ دراتللوعقیده درلودل**

**پوښتنه** :- په ځیني مسجدونو کي دجمعي ترلمانځه یانوروورو سته په ولاړه وائي یانبی سلام علیک ،یارسول سلام علیک یانورڅه وائي اوداعقیده ئي هم وي چي په دي عمل سره رسول الله ﷺ خوشحاله کیږي جواب راکوي اومجلس ته تشریف راوړي. که څوک پکښي ګډون نه کوي هغوئ بندناموي آیاپه مسجدکي داسي سلام ویل صحیح دی کنه ؟

**ځواب** :- داخورابدبدعت دی. داعقیده لرل چي رسول الله ﷺ مجلس ته راځي له شرک سره مستلزم دی. له دي څخه ځان ساتل ،دارواج اوعقیده لیري کول اواصلاح کول دهرمسلمان ضروري دنده ده په تیره دهغوئ چي اختیارلري. داختیارپه خلکوکي دمسجدونومتولیان هم دي ،پر هغوئ ئي منع کول هم ضروري دی. ترمسجدبهرهم داحکم دی. دسلام ویلوهمداطریقه که په قیام (ولاړه) کي وي که په ناسته کي همداپورتنی حکم لري. (نظام الفتاوی ټوک۱مخ ۱۹۲)

**مسئله** :- حاضراوناظردالله ﷻ سپیڅلی ذات دی. له الله ﷻ پرته بل څوک حاضراوناظرګڼل اوپه دي عقیده درلودل ،شرک دی. نوهغه کسان چي درسول الله ﷺ په هکله دحاضراوناظرګڼلوعقیده لري هغوئ په شرک اخته دي له دي عقیدي څخه ورته توبه کول خوراضروري دی. ددي عمل له ګناه سره ، سره په غلطه عقیده هم اخته دی اوکوم خلک چي له دي عقیدي څخه پرته پر دي عمل دوام کوي هغوئ هم ګنهکاران دي. (نظام الفتاوی ټوک۱مخ ۲۹۳)

**مسئله** :- له الله ﷻ پرته بل څوک حاضراوناظرنشته. داسې عقیده لرل شرک دی. داالله ﷻ ځانګړی صفت دی. درسول الله ﷺ په هکله داعقیده لرل چې که وریاندې صلوة اودرودویل کیږي تشریف راوړي یاجلوه کوي دادهغه ذات توهین اوسپکول دي. که درودوریاندې ویل کیږي په صحیح حدیثونوکې راغلي دي چې ملائیکې ئې ورته رسوي اوهلته چیري چې آرام دي ورته وړاندې کوي ئې فلانی دفلانی دزوی له لوري درودشریف ویل درته وړاندې کیږي.
(نظام الفتاوی توک ۱ مخ ۱۹۵- کفایت المفی توک ۱ مخ ۱۵۲)

**په خبروکې کفري الفاظ ویل**

**پوښتنه** :- په ناستواوغونډوکې خبري اتري کیږي. په دوو ماشومانوکې یودکافرپه توګه تظاهرکوي خودهغه عقیده داسې نه وي یوازې په غونډودلچسپي پیداکوي یادزده کړې غرض لري. دکافرذرول اداء کوونکې ماشوم وائې زه له خدای ﷻ څخه منکریم ،دخدای ﷻ په وجوداقرارناپوهي ده یانورهمداسې کفري توري وائې اوجواب ورکوونکې ماشوم هم ورته دکافراومردواخطاب کوي . په داسې خبروکې کوم قباحت شته؟

**ځواب** :- دضرورت په وخت کې دخدای ﷻ دوجوددمنکراوداسلام دمخالف کفریه کلمې اوعقیده نقل کیدل چې ووائې فلانی داسې وائې یادفلانی عقیده داسې ده یاداسې ووائې چې داسې ویل کفردی اوداسې ویل کفرنه دی. همداسې داکراه(جبر) اوسخت حالت په وخت کې چې په زړه کې ایمان ولري یوازې په ژبه دکفردکلماتودویلواجازه ده. (دالنحل سورة)

له دي پرته په خپل اختيارپه مذاق کي ياد تعليمي مقصد لپاره په بي فکري سره د کفر کلمات وائي ياهسي دفيشن لپاره د کفارواو فاسقانو جامې اغوندي خپل ځان غيرمسلم ښيې لکه په سوال کي چې ئي يادونه وشوه. که څه هم عقيده ئي داسي نه وي حرام اوناجائزاوپه ځيني صورتونو کي خود کفرويره ده. په مجموعه فتاوی (توک۲ مخ۳۲۰) کی راغلي چې د کفر کلمات ويل که څه هم وربانديږ عقيده ئي نه وي بياهم کفردی. مولانارشيد احمد گنگوهی فرمائي: کفريه کلمي ويل که څه هم عقيده ئي وربانديږ نه وي بياهم حرام اود خدای ﷻ دغضب موجب دی. مثلاً داسي لکه څوک تاسوته ووائي چې خره ! ياخنزيره: يابله ښکنځادرته وکړي. دهغه سړي داعقيده نه وي چې ته خريابل څه ئي دا ښکنځايوازې په ژبه وائي ته ووايه چې په هغي تاته قهردرځي اوکنه؟ حتماً قهردرځي نوداسي وپوهيږئ چې د کفراوشرک د کلماتوويل دخدای ﷻ دغضب موجب گرزي.

مطلب داده چې يادہ شوي طريقه صحيح نه ده. دپريښودلووړده او اصلاح په دي پوري تړي نه ده. ددي جائزي طريقي ډيري دي.

(فتاوی رحيميه توک۱ مخ۴۳ د تذکرة الرشيد په حواله)

**مسئله**:- که دباطلو فرقو سره دمناظري دښودلو په غرض کوم زده کوونکي خپل ځان په باطلو فرقوکي وشميري اوداهل حق تضليل اوتکفيروکړي داهيڅکله جوازنه لري، سخته گناه ده بلکه دايمان خطره ده. په کفراقرارکول اود کفر کلمه ويل که څه هم عقيده ئي نه وي، داستهزاءلپاره وي داهم فقهاؤد کفرموجب بللی دی.

په داسي مناظروکي دي داسي طريقه اختياروي يو دی ووائي که قادياني داسي ووائي ستاځواب څه دی؟

یارضاخاني داسي ووائي له تاسره ځواب څه دی ؟کفري خبري هيڅکله په خبله وينا کي مه وړاندي کوئ که څه هم دجعلي وکيل په توګه وي. دکفر کلمه په ژبه ويل دظلمت موجب ده ترهغه چې ترديدي ونه شي. (فتاوی محموديه ټوک۱۸ مخ ۱۲۴)

## له خپلي مسلماني څخه انکارکول

**پوښتنه** :- درمضان المبارک په مياشت کي ځوهوټلونه دغيرمسلمانانولپاره دورځي خلاص وي په دی هوټلونوکي له غيرمسلمانانوسره، مسلمانان هم په زيات شميرروژي خوري. که کله پر دي هوټلونوپوليس راپيښ شي نوروزه خوړونکي مسلمانان ونيسي ، هغوئ دسزاله ويري پوليسوته وائي چې مونږمسلمانان نه يو ،پوليس چې داواوري ، هغوئ پريږدي ،داسي کول صحيح دی ؟

**ځواب** :- په دی خبره چې زه مسلمان نه يم ،سړی له دين څخه وزي نورمسلمان نه پاته کيږي داسي خلک دي بيادايمان اونکاح تجديدوکړي اودبيالپاره دی له دي بدحرکت څخه توبه وکړي. دروژي دخوړلولپاره نورعذرونه هم کيدلای شي ځوک چې درواغ وائي هغه بل عذرهم ويلای شي خپل ځان غيرمسلم بلل حماقت دی. (آپ کي مسائل ټوک۱ مخ۵۱)

## که ګوم خفيه پوليس ځان غيرمسلم جوړکړي

**پوښتنه**:- (۱): که ځوک دروزي دترلاسه کولولپاره خپله څهره داسي بدله کړي چې دهندو(ياغيرمسلم) يقين ورباندي راشي. مثلاً په تندي صندل ولګوي ياپه غاړه کي زناروا چوي. داخوافعال دي خوکله لادخپل هندووالي خبره کوي اود مسلمانيدلو خواهش

ځرګند کړي. په داسي حال کي دد مسلمان پاته کيدلو يادنکاح دشتون حکم څه دی ؟

(۲) څوک که په خفيه پوليسو کي وي اوديوه تبنتيدلي مجرم دموندلو په نيت خپله څهره داسي بدله کړي چې دچادمسلمان بللو يقين ورباندي نه راځي هغه بيخي هندووګڼي ، خو هغه په خپله په خپل هندويت اقراروته کړی په داسي حالت کي ئي داسلام اونکاح حکم څنګه دی ؟

جواب (۱) : پرته له ضرورته دکفارو مخصوص لباس استعمالول ممنوع اوناجائزدی،صندل لګول دفارومذهبي شعاردی داسي لکه زنارپه غاړه کول په داسي کارسړی کافر کيږي اوخپل ځان هندو(يابل غيرمسلم) بلل کفردی اودارتدادله امله ئي نکاح فسخ ده. که وروسته همداشخص مسلمانيږي پخوانی نکاح ورته پرته له حلالي څخه شرعاً صحيح کيږي.

(۲) : که يوازي دکفارو ملي (قومي) لباس غوره کړي، کفرنه ده خو ګناه ده اوکه دکفارومذهبي شعارغوره کړي حکم هغه دي چې وړاندي په لومړي جواب کی وويل شو. (فتاوی محموديه ټوک ۲مخ ۱۱۴ دعالمګيری په حواله)

**مسئله** :- رام اورحيم يو بلل اوورباندي عقيده کول کفرده. دچاچي همداسي عقيده وي لمونځ ورپسې نه کيږي. (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ۱۰۳)

**ايانشه کوونکی کافردی**

**مسئله** :- دشرابو په نشه کي که څوک ومري (مړشي )ايمان ئي نه زائليږي اودافعل (شراب څښل) کفرنه بلکه کبيره ګناه ده. داسړی مسلمان دی اودجنازي لمونځ ورباندي کيږي (که څه هم په نشه کي

ومـري) خود تـوبيخ لپـاره دي مقتـدا عالم او دجـامع مـسجد امام
وربانـدي دجنازي لمونځ نه کوي. عام مسلمانان دي وربانـدي لمونځ
وکـړي او پټ دي کـړي خوکـه پرتـه لـه لمانځـه پټ کـړای شـي نوټـول
ګنهکاران کيږي.

**مسئله**:- په شوق اوغلاهم ايمان نه زايليږي، دا شخص هم مسلمان
دی خوګنهکـار دی کـه لاره وهـونکی دغلا پـه حـال کـی ووژل شـي
نودجنازي لمونځ دي وربانـدي نه کـوي خوکـه ونيـول شـي او بيـا ووژل
شي لمونځ ورباندي کيږي.

**مسئله**:- که مسلمان که دزنا په حـال کي ووژل شي حکم ئي هغه دی
کوم چې د شراب څښوونکي دی. (امداد الاحکام توک ۱ مخ ۱۱۷ وعيني، الهدايه)

**علماؤته دښکنځاکوونکي حکم**

**مسئله**:- کـوم خـاص عـالم تـه پـه ښکنځاکولو کفرنه پيښيږي، که پـه
مناظره يانوروخبروکي عاموعلماؤتـه خطاب وشي خومرادورڅخه
مخاطـب وي بيـاهم دکفـرحکم وربانـدي نـه کيـږي. خوځـوک چـې
علماؤته ښکنځاکوي هغه ددي وړنه دی چې مسلمانان ورسره ناسته
ولاړه وکـړي. لـه هغـوئ سره دخوړلوڅښلوپريـښوول دمـسلمانانوپر
ذمه دی. داترهغه وخته چې له دي ګناه څخه توبه ونه کړي.
(امداد الاحکام توک ۱ مخ ۱۱۸)

**رسول الله ﷺ ته ښکنځاکول**

**پوښتنه**:- يوه کـس رسـول الله ﷺ تـه ښکنځاوکړه دسبب دپوښتلوپه
جواب کي ئي وويل مادخپلي ميرمني داخطاراودمکې له امله کړي
وه. ددي شخص حکم څه دی؟

**ځواب:-** داسې شخص (مونږ دې الله ﷻ ځینې وساتي) بالکل له ایمان څخه خلاص دي او میرمن ئې هم ځینې طلاقه ده. داسې شخص ته توبه، دایمان اونکاح تجدید ضروري ده. که اسلامي حکومت وو داسې شخص سزا قتل دی. خو د اسلامي حکومت د نشتوالي له امله داسې سزا نه ورکوله کیږي. خو دومره پوهیدل په کار دی چې پر هغه فشار راوړل شي ترڅو توبه وکړي د ایمان اونکاح تجدید وکړي (نظام انفتاوي ټوک ۱ مخ ۵۳)

## په روژه مسخرې کول

دالله ﷻ اطاعت یو خورا مهم امر دی. ډیر ناپوهان روژه نیسي خو ځیني بد دیانته په ژبه هم داسې الفاظ وائي چې ځان ورباندې کفر ته رسوي. مثلاً وائي روژه دې هغه کسان نیسي چې په کورکې ډوډۍ نه لري. یا داسې چې زمونږ په وږې پاته کیدلو الله ﷻ ته څه ګټه رسیږي. یا داسې نور...

په داسې الفاظو کې ډیر احتیاط لازم دی او په پوره غوره سره په یوه مسئله ځان پوه کول په کار دی. خورا وړه خبره مسخره (ټوکه) او مزاق سره د کفر موجب ګرزي. که یو څوک ټول عمر روژه ونه نیسي، لمونځ ونه کړي یا کوم فرض اداء نه کړي ترڅو ور څخه منکر نه شي نه کافر کیږي. که کوم فرض اداء نه شي دا ګناه ده او کوم اعمال چې ترسره شي د هغه ورته اجرور کول کیږي خو له دین سره خورا وړه خبره په مسخره (ټوکه) کول کفر دی او ورسره ئې د ټول عمر اعمال ضائع کیږي. دا خورا د مراعات وړ خبره ده چې دروژې په اړه هیڅکله داسې خبرې ونه شي مسخره ورسره ونه شي. (فضائل رمضان، ۳۳ او امداد احکام ټوک ۱ مخ ۱۳۳)

**مسئله** :- که څوک لمونځ پرېږدي څو استهزائي ونه کړي هغه داحنافو په نزد کافرنه بلکه فاسق دی دهغه سزاداده چې داسلامي حکومت چارواکي به ئي دومره وهي چې له بدن څخه ئي وينې وبهيږي بيادي بندي کړي ترڅو هلته ومري اويا توبه وکړي. عام مسلمانان دي له هغه چاسره چې لمونځ نه کوي ناسته ولاړه نه کوي خوراک چښاک دي ورسره نه کوي ترڅو توبيخ او تهديد شي (امدادالاحکام ټوک ١ مخ ١١٣ او ټوک ١ مخ ١٤٣)

**يادونه** : ددي سزاګانو اختيار له عامو وګړو سره شته ، که اسلامي حکومت وي نو دامعامله اميرلمؤمنين ته سپارل شوي ده يعني دشرعي محکمې صلاحيت دی. خونابالغ ماشوم يا غلام ته پلار هم سزاورکولای شي خوسزابه په لاس سره اووهل به په سوټي (ډنډه) بابل شي نه کوي. (محمدرفعت قاسمي)

## دالله ﷻ په هکله ګستاخې کول

**مسئله** :- ځيني پيرپرست وائي : که څه غواړې له لوي پير څخه ئي وغواړئ اودالله ﷻ په هکله (داکفريه الفاظ) وائي مونږ له الله ﷻ څخه ولي وغواړو ، دهغه خوداکاردی چې له يوه ئي واخلي بل ته ئي ورکړي اوله بل څخه ئي واخلي بل ته ئي ورکړي (نعوذبالله) ددي خلکوپه زړونوکې دالله ﷻ عظمت بالکل نشته. چې پر خوله ورځي هغه وائي. داپروانه لري چې په دی خبروزمونږ ايمان ځي اوداسې خيال کوي چې داکفري الفاظ دي. (اغلاط العوام مخ ٩٢)

**مسئله** :- دالله ﷻ له شان سره فقط په مسخره کولو ايمان ځي څه داچې ښکنځاوشي داخوخوراستره ګناه او خطرناک عمل دی په دي کې خودايمان اونکاح دتجديدضرورت دی. (نظام الفتاوی ټوک ١ مخ ١٢٥)

## په لمانځه مسخره (ټوکه) کول

**پوښتنه**:- که څوک ووائي چې روژه دي هغه څوک نیسي چې په کورکي اوړه نه لري. په لمانځه کي ناسته پاسته څوک کوي؟که داسي یابله دکفرکلمه څوک ووائي آیادداسي شخص ایمان پاته کیږي ؟

**ځواب**:- په دین کي دمسخري اومزاق هرډول خبره کفرده. ایمان ورسره ساقط کیږي. داسي شخص دي له کفري کلماتوویلو څخه توبه وباسي دشهادت کلمه دي ووائي ایمان دي تجدید کړي اوبیادي نکاح هم نوي کړي. که له توبي پرته اودنکاح له تجدید څخه پرته خپلي میرمني ته ورنژدي کیږي،دواړه ګنهګاردي. (آپ کی مسائل توک۱ مخ۵۰)

**مسئله**:- میرمن ورته ووائي: زه ستاپه قرآن بولي کوم. میرمن ئي مرتده ده ،نکاح ئي ختمیږي. که هغه توبه وکاږي ایمان تجدید کړي بیائي ورسره نوي نکاح کیږي. (آپ کي مسائل توک ۸مخ ۳۲۳ نظام الفتاوی توک۱ مخ ۴۸)

**مسئله**:- درسول الله ﷺ دمبارک ویښته توهین هم کفردی. دفقه په کتابونوکي راغي چې که درسول الله ﷺ دمبارک ویښته په هکله دتصغیرصیغه استعمال شي هم سړی ورباندي کافرکیږي.
(آپ کی مسائل توک۱ مخ۵۲ کفایت المفتی توک۱مخ۳۱)

## له دیني ضروریاتوسره لوبي اومسخري کول

**مسئله**:- هغه کسان چې حدیث نه مني دمنکیر حدیث په نوم مشهوردی. پنځه وخته لمونځ همداسي متواتردی لکه قرآن کریم چې متواتردی. څوک چې له پنځه وخته لمنځونو څخه منکروي،هغه له قرآن کریم څخه هم منکردی،له رسول الله ﷺ اوله اسلام څخه هم

منکر دی. ټول دیني امور چې ثبوت ئې له رسول الله ﷺ څخه په تواتر شوي وي او د رسول الله ﷺ په دین کې شامل وي هرچا ته معلوم وي هغه د دې ضروریات بلل کیږي. دا ټول امور پرته له کوم تأویل څخه منل د اسلام شرط دی. په دې یوه کې تأویل کول یا ور څخه انکار کول کفر دی. نو هغه فرقه چې یوازې په دریو لمنځونو قائل دی او پنځه لمنځونه نه مني هغوئ له اسلام څخه وتلي دي. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۴۹)

**له صحابه ؤ رضی الله تعالی عنهم سره مسخري کول**

**مسئله** :- څوک که د یوه خاص صحابي سره مسخره وکړي هغه تر ټولو بد فاسق دی. توبه ورته ضرورده او که نه د هغه د خاتمې د بدوالي ویره ده. که د څو تنو په استثناء له نورو ټولو صحابه وو سره مسخره کوي او هغوئ بې لاري ګڼي دا شخص کافر او زندیق دی او که ووائي چې زه د فلاني صحابي روایت شوی حدیث شریف نه منم (نعوذ بالله) او پر هغه صحابي د فسق تهمت وتړي دا د نفاق ځانګه او له دین څخه د انحراف علامه ده.

**مسئله** :- څوک چې صحابي ته کافر ووائي هغه شخص په خپله کافر او د اهل سنت والجماعت له ډلې څخه وتلی دی.

**مسئله** :- هیڅ ولي، غوث، قطب، امام، مجدد د ادنی صحابي مرتبې ته هم رسیدلای نه شي او د نبي خو لا ستره مرتبه ده.

(آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۴۹ او ۳۰، کفایت المفتی توک ۸ مخ ۴۱)

**مسلمان که د غیرمسلم مذهبي مشر په وړاندې ټیټیږي او سلام ورته کوي**

**پوښتنه** :- پادري چې کوم خلک خپل کور ته بولي د هغه پښتو ته سر ور ټیټوي او څه پیسې ورکوي. همداسې مسلمان هم څوک ورغواړي، پښتو ته ئې د سجدې په څیر ور ټیټیږي. د دې حکم څه دی؟

**ځواب**:- له واحداولاشريک ذات الله ﷻ څخه پرته (که هغه نبی، ولی، پاچاياهرڅوک وي) هغه ته سجده کول اويا غيرالله ته په ځمکه سرايښودل په محمدی شريعت کي قطعي حرام دی، کبيره ګناه ده. که دعبادت په نيت وي نو دکفرموجب دی. که دتعظيم په توګه وي يابل نيت پکښي نه وي بياهم ددیرو علماؤپه نزدد کفرسبب دی.

په درمختارکي مع الشامی (توک۵مخ ۳۲۷) کی راغي چې څوک کوم عالم، پاچايابل چاته په ځمکه سرږدي دادعبادت اوتعظيم په نيت وي کافرکيږي اوکه دسلامي په ډول وي کافرنه دی خودکبيره ګناه مرتکب دی. (درمختار) دپوښتني په يادونه کي که دکوم ګروه (غيرمسلم مذهبي مشر) په وړاندي دعبادت په نيت نه وی بلکه دتعظيم په مقصد دسجدي په څيرسرټيټ کړي. ددي لپاره هم توبه اواستغفارضروراودنکاح تجديد دي وکړي. (فتاوی رحيميه توک۲ مخ ۳۷۸)

## درکوع په څيرټيټيدل اوتعظيم ياشکريه کول

**مسئله**:- دمسلمانانوايمان دی چې الله ﷻ ترټولودتعظيم وړدی. الله ﷻ هغه ذات دی چې وړتيالري چې انسان ورته دنيازتندی (تندی) کښيږدي. له همدي امله په اسلام کي غيرالله ته سجده کول حرام دی. همداسې فقهاؤدرکوع په شان ټيټيدل هم مکروه بللی دی چې په هغه شان سلام وشي پايي تعظيمه وکړي.

له احسان کوونکي شکريه اداء کول په حديث شريف کي ثابت دی چې داحسان کوونکي شکراداء کړي. ښايي چې هغه په ژبه سره وي اوغوره لفظ پکښي جزاک الله دی. خولکه څنګه چې غيرالله ته سجده کول ناجائزده هغسي درکوع په څيرټيټيدل هم ناجائزدی.

(فتاوی رحيميه توک۱۰ مخ ۱۹۰ شامی توک۵ مخ ۲۳۸، ترمذی توک۲ مخ ۱۷)

**مسئله** :- د تعظیم لپاره د مور پښې ښکلول له قرآن او حدیث څخه ثابت نه دی ،دا اسلامي درناوی نه دی. بلکه د نورو طریقه ده دهغې ځان ساتل ښه دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۳۵۳)

**مسئله** :- ټیټیدل او د چاپښې ښکلول یا قبر ښکلول ښه نه دی. ځکه ټیټیدل او سلام کول صحیح نه دی نو ټیټیدل او پښې ښکلول چې له سجدې سره مشابه وي څنګه به صحیح وي. قبر ښکلول له دې امله حرام دی چې دا تقبیل ارض (د ځمکې ښکلول ) دی. له دې امله هم حرام دی چې داله سجدې سره ورته والی لري. له دې امله هم حرام دی چې په دې کې وغیرالله ته تعظیم دی. دا ټول حرام دی (عزیزالفتاوی ټوک ۴ مخ ۱۴)

**مسئله** :- که د عبادت په توګه علماؤ اولویانو ته سرټیټ او ځمکه ښکل کړي نو کافر کیږي خود سلام او تحیة په ډول داسې وکړي کافر خو نه دی اما د کبیره ګناه مرتکب دی. (عزیزالفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۲)

## دکفر دکلمې دویونکي دذبیحې حکم

**مسئله** :- که د کوم مسلمان له خولې داسې کلمه ووزي چې کفرور څخه لازمیږي. په هغې کې تأویل وکړي او د کفر فتوی ورباندې ونه لګیږي . د داسې شخص دلاس ذبیحه (حلاله ) جائزده خو د داسې الفاظو له ویلو څخه دې په کلکه منع کړای شي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۱ مخ ۳۵۳ )

## دبزرګانو پښې ښکلول

**مسئله** :- احتیاط دادی چې دلویانو پښې ښکل نه شي. ځکه دا ښکلول او تعظیم ،سجده کول ،پرځمکه او د مشائخو لاسونه ښکلول په اتفاق سره کبیره ګناه ده بلکه ځینې فقهاء لا د کفر حکم پر کوي (عزیزالفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۵)

**مسئله** :- د مرشد د تعظيم سجده حرامه ده . (امدادالاحکام ټوک ١ مخ ١١۴)

**مسئله** :- د تعظيم سجده ټول علماء کفرګڼي . سجده خاص الله ﷻ ته ځانګړې ده . د خپل پير تصوير ته سجده کول لعنت دی او کوم خلک چې د تصوير سره دا معامله کوي هغه ملعون او مردود دی . د هغه په کفر او د شرک د فعل په ارتکاب کې کوم تردد نه معلوميږي .

(عزيزالفتاوی ټوک ١ مخ ١٧)

## دقبرښکلول

**مسئله** :- ټيټيدل او پښې يا قبر ښکلول صحيح نه دی . دا چې ټيټيدل او سلام کول صحيح نه دی نو ټيټيدل او پښې ښکلول چې له سجدې سره ورته والی لري څنګه به صحيح وي . قبرښکلول له دې امله هم حرام دی چې هلته له سجدې سره ورته والی دی او له دې امله هم حرام دی چې پکښې د غيرالله تعظيم دی . (عزيزالفتاوی ټوک ١ مخ ١۴)

## د مزار په اړه د عقيدې حکم

**پوښتنه** :- د اولياء کرامو په نوم نياز او نذرونه کول او مرادونه غوښتل جواز لري او کنه ؟ او د هغوئ پر مزار ګلان يا څادر غوړول صحيح دی کنه ؟

**ځواب** :- اولياء کرامو ته نذر منل او د درناوي لپاره ئې په قبر څه شی غوړول حرام دي . او دا عقيده لرل چې دا مزار زمونږ مراد پوره کوي او د دنيا هر څه د ده په تصرف کې دي دا شرک دی .

(فتاوی محموديه ټوک ١ مخ ١٢٢ د مراقی مخ ٢٢٨ په حواله .)

**مسئله** :- د سجدې يا کوم بل ځای په هکله دا ويل چې دلته شهيد بابا دی هلته د درناوي لپاره څه غوړول يو مشرکانه حرکت دی ، توبه ورڅخه لازمه ده . (فتاوی محموديه ټوک ١ مخ ٢٣٢)

**مسئله** :- پر مزارونو باندې څادر غوړول منع دي. داولياؤ له ارواحو څخه استمداداو مرسته غوښتل يعني داسې عقيده لرل چې که په مصيبت اخته کيږو او دې بزرګانو ته آوازو کړو او مرسته څيني وغواړو هغه زمونږ فرياد هرځای اوري او زمونږ مرسته کوي .دا اسلام عقيده نه ده ،بيوه مشرکانه عقيده ده له دې سره ايمان سلامت پاته کيدل ګرانه خبره ده. (فتاوی محموديه ټوک ۱ مخ ۲۰۲ - احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۶)

**مسئله** :- دمزار پر دروازه ټيټيدل ،سرايښودل او دسجدې شکل اختيارول که دتعظيم په قصدوي حرام دي او که دعبادت په قصدوي نو شرک دي. قبر يا دروازه او ديوال ښکلول هم حرام دي.
(فتاوی محموديه ټوک ۱۰ مخ ۲۱)

**مسئله** :- مصنوعي قبر جوړول دکوم ولي دقبر نوم ور باندې ايښودل ،خلک ور باندې خطا کول قطعاً ناجائزدي. څراغ پکښې بلول، سجده ورته کول منع او ناجائزدي. که رښتيا هم ديوه ولي قبر وي ددې افعالو ارتکاب ورسره ناجائزدي او دعبادت په نيت ورته سجده کول شرک دي. او که دتعظيم په نيت وي حرام او شرک ته ورته عمل دي. که دالله ﷻ لپاره نذر وکړي او خواړه ئې دمزار فقيرانو ته ورکړي ،خوړل ئې فقيرانو ته جائزدي. که دانذر دقبر دڅښتن په نوم وي داحرام دي او خوړل ئې صحيح نه دي. (فتاوی محموديه ټوک ۵ مخ ۳۲۲)

**مسئله** :- ډير حضرات ،اولياء حاجت روا ،مشکل کشاګني. په دې نيت ورته فاتحه وائي څه شی ورته راوړي او وائي هغوئ زمونږ په کاروبار کې ترقي راولی ،په مال اولاد کې زياتوالی کيږي ،رزق زياتيږي ،داولاد عمرډيريږي. داسې عقيده درلودل شرک ده. له قرآن کريم څخه ئې ابطال ښکاره دي.

**مسئله** :- ځيني کسان پر قبرونو باندی څه شی ږدي داچې مقصدورڅخه داولياؤ رضامندي ده اوهغوئ حاجت رواګڼي ،داعقيده درلودل شرک ده اوداېښودل شوي شي خوړل هم ناجائزدی.

**مسئله** :- همداسي دعرس په مهال يابل وخت داولياؤپر مزارونوڅادرونه اچوي دامکروه اواصراف ده. دعواموچې کومه عقيده ده هغه شرک ده. غضب لادادی چې نذرورته مني. ځيني خلک له ليري ځايه ورته راځي دماشومانوڅلويښتي هلته کوي همدانذرپوره کوي ځيني دضررد ليري کيدلوپه هيله ورته راځي ،ځيني ورته څراغونه بلوی، قبرونه جوړوي. خوپه قرآن کريم کي په ښکاره توګه له دي عمل څخه دتوبي حکم شوی دی (اغلاط العوام مخ۳۳)

**مزارته تلل اوهلته عقيقه کول**

**پوښتنه** :- دلته ميرمني وائي که مي زوی پيداشودهغه دسرويښتان به هغه خاص ځای خريېم اوقرباني به هم هلته کوم. داڅنګه دی ؟

**ځواب** :- دادهندوانورسم (رواج) دی چې مسلمانانوته راغلی دی. داچې دعقيدي فسادپکښي دی نويواعتقادي بدعت دی. په ځيني ځايونوکي دکذب اوشرک ځای ته رسيږي. لکه دځينوچې داعقيده وي چې داماشوم راته فلاني بزرګ راکړ. نودهغه بزرګ په نوم نذرمني اونذردپوره کولولپاره مزارته ځي اودماشوم ويښتان هلته اخلي (خريي) ،هلته قرباني کوي اونورډير خرافات سرته رسوي. مسلمانان دي له داسي خرافاتوڅخه ځانونه وساتي. (آپ کی مسائل توک ۴ مخ۲۳۹)

**دباران نه کيدلوله امله دمرستي (چندي) وزه حلالول**

**مسئله** :- په داسې مهال چنده کول وزه اخستل اوغوښې ئې صدقه کول واجب ګڼل غلط دی. دامهال که هرڅه ورسره وي ،له خپل وس سره سم له هغه څه يوازې دالله ﷻ لپاره څه ورکول غوره دی دوزې حلالول چې غوښه ئې صدقه کيږي غلطه خبره ده. په نافله صدقه کې غیرمسلم خلکوته ورکړه صحیح ده. (فتاوی رحیمیه ټوک ۳ مخ ۲۰۴)

**مسئله** :- داطریقه سمه نه ده چې دباران دنه کیدلو په وخت کې په کليو کې لـه کورونو څخـه وريـځـي يانورڅـه ټولـوي بيـايې پخوي،ماشومان رابولي ،پرته له فرقه ئې شتمن اوبې شتوخوري ،په خپله ئې هم خوري.صدقه دغريبانوحق دی اودغريبانوحاجت په مخفي طريقه پوره کول دی .(فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۳۲۷)

**ايا په هرشي کې دالله ﷻ حلول دی ؟**

**مسئله** :- دالله ﷻ په هکله دغیرمسلموپه څیرداعقیده درلودل چې په هرشي کی ئې حلول کړي،کفردی.همداسې داعقيده درلودل چې هغه په عـرش يـاکوم بـل ځـای دی داسې لکه پاچاچې په تخت دپاسه وي،داهم کفردی. له دې دواړوعقیدوتوبه کول اوځان ساتل لازم دی. خدای ﷻ په کوم ځـای کې محدودنه دی هغه لـه مکـان څخـه منزه (پـاک) دی اولـوړدی. پـه شـرح عقـائـد مـخ ۳۴کې راځي چې البتـه پرعرش باندې دالله ﷻ خاص تسلط اواستیلاء ده په کیفیت ئې الله ﷻ ښه پوهيږي اودعلم په لحاظ هغه پر هرشي محیط دی.
(فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۱۳۲ دعالمګيري اومدارک په حواله)

**دځان ساتلو لپاره دکفراقرار**

**مسئله** :- که کوم مسلمان دکفاروپه ګیرورشي. پرته له دې چې دروا غ وواېي بله چاره نه لري اوواېي چې زه مسلمان نه یم خوکله چې د امن

ځای ته ورسیږي له ویل شویو دروا غو څخه توبه وکړي، هغه خبره ئې همدا یوازې په ژبه کړي وي دا شخص ګنهکار نه دی خو داسې ویل دځانه دهلاکت په وخت کې ویل غوره دی. دعماربن یاسر ﷺ پیښه په حدیث شریف کې یاده شوې ده. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۴ مخ ۹۱ دقرآن کریم په حواله)

**دکفرله کلماتوسره دنکاح حکم**

**مسئله** :- دکفرد کلمو په ویلو نکاح له منځه ځي یعني په کومه خبره یا فعل چې دانسان ایمان ختمیږي په هغه وجه نکاح هم له مینځه ځي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۴ مخ ۷۹)

**مسئله** :- د ایمان دتجدید لپاره دتوبې او استغفارله ویلو سره دنکاح دتجدید حکم هم شوی دی. ددوو شاهدانو په مخ کې دې له نوي مهر سره ایجاب او قبول وکړای شي، دنکاح خطبه او اعلان فرض نه دی، سنت دی دنکاح دتجدید لپاره عدت لازم نه دی. (فتاوی حمودیه ټوک ۱۸ مخ ۱۱۰)

**مسئله** :- دشهادت کلمه دې په ژبه ووائي او په زړه کې دې تصدیق وکړي. په کوم شي چې دایمان څخه خلاص شوی دی دهغه دې اقرار وکړي که له اسلام څخه وتلی او عیسایت ئې غوره کړی وي له هغه دې بیزاري او برئت وکړي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۲ مخ ۱۱۲)

**مسئله** :- ارتداد ستره ګناه او لوی جرم دی خو چې مردود زړه دله اخلاصه توبه وکړي په اسلام کې داخلیږي مسلمانان دې هغه په خپلو کې شامل کړي. (کفایت المفتی ټوک ۱ مخ ۴۲)

**ایادحدیث شریف منکرین مسلمان دي ؟**

**مسئله** :- داهل قرآن مدعیان چې له احادیثو څخه انکار کوي، مسخري کوي، په لمانځه پسې خندا کوي، له پنځه وخته لمنځونو څخه

انکارکوي. داخلک له اسلام څخه خارج دي. دهغوئ دجنازي لمونځ
کول دمسلمانانوپه هدیره کي ئي پټول له هغه سره ښادي کول
اونورتعلقات صحیح نه دي. (فتاوی رحیمیه توک۱ مخ۲)

**مسئله** :- څوک ې دخدای ﷻ له وجود(شته والي) څخه انکارکوي
داشخص بدعقیده ،ملحداوبي دین دی. په هغه توبه ،تجدیدایمان
اودنکاح تجدیدلازم دی. (فتاوی رحیمیه توک۱ مخ ۱۳)

**ایاداستادتوهین کفردی؟**

**مسئله** :- دموراوپلاریااستادتوهین پرته له شرعي وجې ګناه ده.
کفرنه ده. نه ورڅخه ایمان ځي اونه ئی نکاح ختمیږي. خوکه څوک
قطعي حرام حلال وګڼي داکفردی،ایمان ورڅخه ځي اونکاح ئي
ختمیږي. (محمودیه توک۱ مخ۲۱)

**مسئله** :- داسي ویل چې (الله ﷻ ډیربي انصافه دی چاته اولادورکوي
اوچاته ئي نه ورکوي) داکفرده. نعوذبالله منه،استغفرالله. ویونکي
ته ضروري ده چې توبه اواستغفارووائي دایمان تجدیدوکړي
اونکاح هم بیاوتړي. (فتاوی محمودیه توک ۱۲مخ ۷۲)

**په ګناهونوباندي ویاړ(فخر)کول**

**پوښتنه** :- که څوک په ښکاره ګناهونواخته وي اوداهم وائي چې زه په
خپله ګناه فخرکوم ددي شخص حکم څه دی؟

**ځواب** :- دشریعت په مخالفت اودالله ﷻ په نافرماني ویاړکول له
شبهي پرته کفردی. نوهمداسي شخص داسلام له دائري څخه وتلی
اومرتددی. پرهغه باندي دایمان اونکاح تجدیدلازم دی. دوخت
پرحاکم باندي فرض دی چې هغه ته دایمان اونکاح دتجدید تلقین

وکړي. که خدای مکړه توبه ئي ونه کړه نو دهغه دمړ کولو حکم دي
ورکړي. داچې په مسخره سره دکفر کلمه څوک ووائي او په ښکاره
ګناه کوونکي مرتد داوواجب القتل دی نو په ګناه باندي
دفخر کوونکي په کفر کي څه شک دی ؟ (احسن الفتاوی ټوک۱ مخ۴۰)

## بتانو ته سجده کول

**پوښتنه** :- که دچامیرمن مندر ته لاړه شي، بت ته لاسونه څوړ او سجده
وکړي، نذرونه کړي او مرادځیني وغواړي آیاهغه مسلمانه پاته
کیدلای شي؟

**ځواب** :- دامیرمن بت ته دسجدي کولو له امله کافره ده.
(امدادالمفتین ټوک۸ مخ ۳)

**مسئله** :- غیرالله ته که سجده دعبادت په نیت وشي نو هغه څنګه
کفراو ارتداد دی. خو که دمعمول تعظیم په قصد وي کفر خو نه دی
اما ستره ګناه او شرک ته نژدي ده. (امدادالمفتین ټوک۸ مخ۱۷)

## دغیرمسلم کف او چف کول

**مسئله** :- له غیرمسلم څخه یوډول داعلاج او درملنه کول دی چې هغه
دمعالجی دفن ماهروی لکه ډاکټر، حکیم اونورچې یوازي له فن څخه
ئي ګټه اخستل کیږي. لکه کوم وکیل چې له غیرمسلم څخه په دعوی
کی پیروي کوي. په دي کي کوم شرعي مشکل نشته. دعلاج
اومعالجي بل صورت دادی چې هغه داهسي دربار مقبول وبولي
اوداباور ورباندي ولري چې کوم الفاظ دهغه له ژبي راوزي هغه
بابرکت اومقبول دی. که هغه دم وکړي الله ﷻ به مرض ختم کړي. په
دي صورت کي له غیرمسلم (کافر) څخه دم کول دامعنی لري چې

شايد هغه دالله ﷻ په درباركي منلى دى حال داچې هغه دكفرله امله ددي مستحق نه دى وپه دي سره عقائد خرابيږي (فتاوى محموديه ټوک۱۴ مخ۲۳)

**په مشركانه منترعلاج كول**

**پوښتنه** :- يوشخص منتروائي، هغه له غيرالله څخه مرسته غواړي. هيڅ دالله ﷻ نوم نه اخلي دهغه دم شرعاً جوازلري؟

**ځواب** :- له داسي شخص څخه دم اوكف كول جائزنه دى. هغه ديوي (ديوتا) شافى اومتصرف ګڼي. اودادم كوونكى ديوتامقرب بولي، داسي عقيده داسلام خلاف اوكفرده له هغه څخه دم اخستل دهغه دعقيدي تصديق كول اودهغه اعزازدى. شافى مطلق، حاجت روااومتصرف يوازي دالله ﷻ پاک ذات دى له هغه څخه بغاوت په ژوندكي هم وبال اوپه مړينه هم عذاب دى. (فتاوى محموديه ټوک۱۰ مخ۱۱۵)

**مسئله** :- په كفريه الفاظودم دعاكول په هيڅ ډول صحيح نه ده اوهغه كفريه الفاظ حق اوصحيح ګڼل كفردى اووربانديي له ميرمني سره ئي نكاح ختميږي. كه په داسي كفريه الفاظودم تعويذكوي. ترتوبه وروسته دي دايمان اونكاح تجديدوكړي. (نظام الفتاوى ټوک۱ مخ۵۱)

**درودتاج ويل څنګه دى**

**پوښتنه** :- ددرودتاج ويل څنګه اوحكم ئي څه دى ؟ په دي درودكي رسول الله ﷺ دافع البلاء والوباء والقحط والمرض والالم بلل شوى دى.

**ځواب** :- ددرودتاج الفاظ دقرآن اوحديث نه دى. له صحابه ،تابعينواونورونيكانوئي دلوستلواثبات نشته ،دادرودتاج په سلګونوكلونه وروسته ترتيب شوى دى. ددي درودالفاظ له هغه

درود سره چې رسول الله ﷺ صحابه وو ته ورښودلی دی (لکه دابراهيم ﷺ درود يا نور) برابري کولای نه شي. هغه الفاظ چې رسول الله ويلی دی او هغه الفاظ چې کوم امتي ايجاد کړي دی په برکت دځمکي او اسمان په څير فرق لري.
لنډه دا تر ممکن حده دی هغه درود وويل شي چې په حديث کي ثابت دی. دهغه درود چې الفاظ ئي په حديث کي ثابت نه دی، هغه دي مسنون نه ګڼل کيږي. دهمدي ياد وشويو الفاظو ويل دعلماؤ له خوا جائز نه دی ګڼل شوی. ځکه دمشکلاتو حل کوونکی يوازي قدوس ذات دی. په مخلوق کي څوک دافع البلاء يا بل څه منل داهل سنت دعقيدي خلاف دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۲۹۸ دترمذی شريف په حواله ټوک ۲ مخ ۱۷ وفتاوی رشيديه مخ ۱۲۲)

**مسئله**:- ددرود تاج کوم فضائل چې په ناپوهانو کي مشهور دی. هغه کوم اصل او اساس نه لري. په حديث شريف کي ثابت نه دی. دفضائلو او دثواب اندازه معلومول درسول الله ﷺ له بيان څخه پرته محال دی. دا درود په سلګونو کلونه وروسته ايجاد شوی دی. ددي فضيلت او دثواب اندازه چا او کله ويلي ده؟
په حديث شريف کي چې کوم د درود الفاظ ثابت دي هغه پريښودل او غير مسنون الفاظو ته غټ، غټ ثوابونه قائليدل او وربانديي عقيده درلودل او وظيفه ئي ضروري بلل بدعت دی، په دي کي ددافع البلاء الفاظو په فرق عوام نه پوهيږي نو دهغه دويلو حکم ورکول هغه په شرک کي له اخته کولو سره برابر دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۳۰۱ دمجمع البحار ټوک ۲ مخ ۲۲۴ او فتاوی محموديه ټوک ۱ مخ ۲۳۲ په حواله)

**خلاصه** : ددرود تاج په هکله داخبره په یادولرئ : داله حدیث شریف څخه ثابت نه دی او نه ئي لوستل له صحابه وو څخه نقل شوی دی، داوروسته ایجاد شوی دی. کوم الفاظ چې پکښې موجود دي دشرک بوی تري پورته کیږي نو احترازور څخه کول خیردی. پر رسول الله ﷺ ددرود اهتمام خورمبارک اهتمام دی خو ددي اهتمام مهال په دی په ژبه هغه درود وایاست په صحیح حدیث شریف اوسنت کی ثابت دی. دنورو له لوري تصنیف شوی درود که څه هم ډیر کشش لري خو هغه سعادت اوبرکت پکښې نشته کوم چې درسول الله ﷺ په تعلیم اودصحابه کرامو په عمل کي دي. *(محمد رفعت قاسمی)*

**مسئله** :- درسول الله ﷺ له نوم سره دسید نالفظ ویل بدعت نه دی داله حدیث شریف څخه ثابت دی. (فتاوی رحیمیه ټوک۳ مخ ۳۰۲)

**وسیله اودعا**

**پوښتنه** :- توسل بالانبیاء والاولیاء جائزدی او کنه؟

**ځواب** :- توسل که هغه په ژوندووي که په مړه شویو، په اشخاصووي اوکه په اعمالو، په خپل عمل وي اوکه دبل په هرحال ددي حقیقت اودټولو صورتونو مرجع دالله ﷻ په رحمت ده. داسې چې دفلانې مقبول بنده چې ورباندي رحمت شوی دی په هغه توسل کیږي. داسې توسل بالرحمة جوازڅه چې ارجی للقبول دی اوکومه شبه پکښې نشته اوداټول صورتونه په توسل کې شامل دي نودتوسل داصورتونه جائزدی. حقیقت یې دادي چې یا الله ! ستاپه هغه رحمت چې مونږته دي دهغه اوهغه نیک عمل توفیق راکړی، زه په هغه رحمت توسل سره دعاکوم.

دتوسل دحقيقت په پوهيدلو بيادهغه دفضيلت په هکله کوم دليل ته ضرورت نشته . (احسن الفتاوی ټوک ١ مخ٣٣٢)

**مسئله** :- دوسيلي دپوره تفصيل لپاره وګورئ (اختلاف امت اورصراط مستقيم).

اشخاص مخاطب کول (که هغه مړه وي یاژوندي) اوورڅخه غوښتنه کول شرک دی خوله الله ﷻ څخه غوښتل اوداويل چې : یاالله ! ستادنيکواومقبولوبندګانوپه طفيل زمادامرادپوره کړي ، شرک نه دی . ځکه هغه شخص دشفيع په صفت يادېږي اودائي مقصوددی.
(آپ کي مسائل ټوک ١ مخ ٣١ اودعبدالحی فتاوی مخ ٣٤٩ او٣٩٥)

## دوسيلي ډولونه اودهغوئ حکم

**مسئله** :- خلک دوه ډوله توسل کوي: يوداچې وائي ای فلانی پيره صاحبه ! ته له الله ﷻ څخه زمامرادپوره کړه ياخپل پيريانورمرستي ته راغواړي ،له هغوئ څخه خپل مرادغواړي ياهغه دخدای ﷻ په کارونوکي داخل ګڼي . داسي چې ،يالوی پيرصاحب «المدد»وائي ، يادکوم مزاراهل ته وائي چې زماداکارجوړکړه يانور.... داسي توسل ناجائزبلکه شرک دی . داکه څه هم استمداددی خوعوام ئي وسيله بولي اوپکښي اخته وي .

دوهم ډول توسل دادی چې وائي : ياالله ﷻ ! زه دفلاني بنده په برکت اووسيله دادعاکوم چې دهغه دمقبوليت اومحبت په طفيل زمادعاقبوله کړه دادوسيلي توسل جائزدی اوپه جوازکي ئي ډيردلائل شته . مثلاً : په خپله رسول الله ﷺ په تيرشويوانبياؤتوسل کړی دی . (نظام الفتاوی ټوک ١ مخ ٧٠ اوجمع الفوائدمخ ٣٢٤)

## دنبی یاولي په طفیل دعاکول

**مسئله** :- هو! که یوازي الله ﷻ ته دعاکوي له ولي یانبی څخه غوښتنه نه کوي، هغه یوازي وسیله ګرزوي. مثلاً څوک وائي یاالله ﷻ! فلاني نبی یاولي ستامقبول بنده دی. دهغه په وسیله زمادعاقبوله لره داجائزده. (نظام الفتاوی توک ۱ مخ ۷۲ دشامی توک ۲ په حواله)

## درسول الله ﷺ په وسیله دعاکول

**پوښتنه** :- یوڅوک درسول الله ﷺ په طفیل له دعاکولو سره اتفاق نه لري، هغه وائي: څه چې غواړي هغه له الله ﷻ څخه غواړه پرته له وسیلې کارونه کیږي ګواکي دوسیلې په طلب کې مونږ شرک کړه وړه کوو.

**ځواب** :- که څوک پرته له وسیلې څخه دعاکوي داهم صحیح ده اوکه څوک له الله ﷻ څخه داسي غوښتنه کوي چې یاالله ﷻ! زمااحاجت درسول الله ﷺ په طفیل پوره کړه داهم صحیح ده. داشرک بلل غلط دی همداسي رسول الله ﷺ تعلیم ورکړی دی.

(فتاوی محمودیه توک ۱۷ مخ ۱۴۹۹ اوترمذی شریف توک ۱ مخ ۱۹۹ اومشکوة مخ ۱۹۲)

## ۳ علم الاعداد معلومول

**مسئله** :- ددي علومو په هکله دڅوخبروپوهیدل ضروري دی:

(۱): دراتلونکوپیښو(حادثو)په پوهیدلوچې څومره طریقې دي هغه له انبیاؤ پرته چې ورته وحی شوي وي، نوري قطعي اویقیني نه دي. هغه ډیرپر حساب اوتجربه بناء دي، تجربه اوحساب کله صحیح وي اوکله غلط نوپه دي علوموبقیني وړاندوینه کول ممکن نه ده چې لازماً به صحیح وي بلکه کله به صحیح وي اوکله به غلط.

(۲): غیریقیني شی یقیني اوقطعي بلل په عقیده اوعمل کي دفساد سبب ګرزي نوځکه ددي علوموپه پایلوسل په سلوکي یقین کول ممنوع دی، چې اکثرعوام هغه یقیني ګڼي.
(۳): دراتلونکي په هکله وړاندوینه پر دوه ډوله ده. ځیني داسي دی چې انسان دهغه تدارک کولای شي اوځیني داسي دي چې دهغوئ تدارک ممکن نه دی.
ددي علوموپه ذریعه چې کومي وړاندویني کیږي په هغوئ کي پرته له تشویش څخه بله ګټه نه لري. (ځیني کسان له دي څخه په ناهلي کي پاته کیږي غلط اقدامات کوي) داعلوم دغیرمحموده علوموپه شمارکي دي.
(۴): ددي علوموخاصیت دادی کوم خلک چې پکښي اشتغال لري که هغه دتعلیم اوتعلیم لپاره وي اوکه دګټي په لحاظ وي. له الله ﷻ سره تعلق نه ساتي. همداوجه ده چې انبیاؤ علیهم السلام په تیره رسول الله ﷺ په دي علوموکي دنه اشتغال هدایت کړی دی بلکه دهغوئ اشتغال ئي ناخوښه ګڼلی دی. دانبیاؤځای ناستوهم په دي علوموکي اشتغال خوښ کړی نه دی. نوداعلوم که دخپل ذات په لحاظ مباح دی ددي عوارضوله امله داحترازوړدی.
(آپ کي مسائل توک ۸ مخ ۲۶۷)

## پر علم الاعدادباندي یقین کول

**پوښتنه**:- داچې لاس ګوري دقسمت معلومولولپاره چې څه لیکلي وي ،زه په هغه ډاډه یم خودعلم الاعداداونجوم ترمنځ سترتوپیردی. په دي کي داسي کیږي چې دشخص دنوم دابجد په حساب یوعددراغوره کوي بیادهغه په معلومولودعلم الاعدادماهرد هغه له

ښواوبدوڅخه خبروي. که دايوازې علم وګڼل شي ، که غلطي خبري پکښې ليکلي وي ، په هغو يقين ونه شي آيابياهم ګناه ده ؟

**ځواب :-** په علم نجوم اوعلم الاعدادکې دمقصداوپاېلې په هکله کوم توپيرنشته ،هلته دستوروپه حرکت اودهغوئ په اوضاع (اجتماع اوافتراق) دقسمت په هکله استدلال کوي اودلته دجمل په حساب اعدادراباسي اوورباندې په قسمت استدلال کوي، ګواکې په علم نجوم کې په انساني قسمت ستوری اغيزمن ګڼي اوپه علم الاعدادکې دنوم دعددونوپه تاثيرعقيده اوباورلري. لومړی خوداشيان حقيقي موثرګڼل کفردی. بياپه اټکل سره اموريقيني ګڼل غلطه خبره ده نويقين ورباندې لرل ګناه ده. که فرضاً په دې کې داعتقاددخرابۍ فکرنه وي اونه مسلمان ته زيان پکښې وي ،نه دايقيني وګڼل شي اوداووائي چې ددې ښودل ګناه نه ده نوله دې شرائطوسره سره دايوعبث فعل ګڼلوکې ئې کومه شبه نشته. که دې شيانوته توجه کيږي ددين اودنياضروري اموروته توجه بيانه کيږي.

(آپ کې مسائل تو ک ۱ مخ ۳۷۱)

## دراتلونکې دمعلوموملولپاره لاس کتل

**پوښتنه :-** آيادراتلونکې دمعلوماتولپاره ددې فن ماهرته دلاس کتل جائزدی؟ که ددې فن دماهرپه خبرويقين ونه شي اودشوق لپاره وکتل شي بيائې حکم څه دی؟

**ځواب :-** جوازنه لري. ددې عقيده لاوړاندې خرابيږي عقيده صحيح کول اوتوبه کول ورته لازم دی که ئې لاوړاندې عقيده خرابه نه وي اويوازې دتجربې لپاره ئې ګوري ديته هم قطعاً اجازه نشته ځکه دلته

هم دعقيدي دخرابي ويره ده اودفاسد العقيده خلکودعقيدي دفساد تائيد وربانديي کيږي. (فتاوی محموديه ټوک ۱۸ مخ ۷۷)

**په ستوري اعتقاددرلودل کفردی**

**پوښتنه** :- چادخپلي لورنکاح له يوه عزيزسره وکړه، څوورځي وروسته هغه ورته جواب راورستاووچې ماته دعلم الاعداداونجوم له حساب څخه ښکاره شوه چې دماشومانو په هکله دستوروپته نه لګيږي په شريعت کي دافعل ترکومه حده صحيح دی؟

**ځواب** :- په نجوم (ستورو) اعتقاد کفردی.

**مسئله** :- په نجومي باندي لاس دکتلوشوق ډيرغلط کاردی اويوبي مقصده کارهم دی اوګناه ئي هم ډيره ده ځوک چې دلاس کتلو په جنجال کي راګيروي هغه تل پريشانه (خفه) وي.

**مسئله** :- داسلام له نظره لاس کتل اوپه هغوشيانواعتماد کول جوازنه لري.

**مسئله** :- دقرآن اوحديث له نظره دلاس په کتلويقين کول صحيح نه دی

**مسئله** :- ځوک چې لاس ګوري بيادرڅخه خبري کوي هغه ته ورتلل ګناه ده يقين وربانديي کول کفردی. دصحيح مسلم ديوه حديث په روايت کي راځي چې رسول الله ﷺ وفرمائل: (ځوک چې کاهن، نجومي ياقيافه پيژندونکی ته ورځي اوکومه خبره ورڅخه معلومه کړي ترڅلويښتوورځوپوري ئي لمونځ نه قبليږي) په مسنداحمداوابوداؤدکي حديث شريف راځي چې رسول الله ﷺ ددريوکسانوپه هکله فرمائي چې هغوي پر محمدرسول الله رانازل

شوي دين څخه وتلي دي يو پکښې هغه څوک دی چې کاهن ته ورځي او دهغه دخبري تصديق کوي.
(آپ کي مسائل ټوک ۱ مخ ۳۷۳ دمسلم ټوک ۲ مخ ۲۳۳، بهشتي زيور ټوک ۷ مخ ۳۹، بخاري شريف ټوک ۲ مخ ۹۷ باب الطلاق او ترمذی ټوک ۱ مخ ۳۹۱ په حواله)

**مسئله**:- دخپل قسمت حال معلومول يا هغه حالات چې په اخبارونو کي ليکلي چې دفلاني فلانئ مياشتي له زيږيدلو کسانو سره به داسي او داسي وشي يادا چې دفلاني تاريخ دزيږيدونکو کسان برج هغه دی داټول ګناه دی. ځکه داسلام له نظره نه چاته دچا دقسمت صحيح حال شته او نه په برجونو او ستوورکي ذاتي اثرشته په دی خبرويقين کول ګناه ده. داسي کسان تل پريشانه وي او توهم پرست تري جوړيږي.

**مسئله**:- دستورو علم يقيني نه ده او ستوري په خپله هم مؤثرنه دي ځکه ورباندي ديقين کولو څخه ممانعت شوی دی.
(آپ کي مسائل ټوک ۱ مخ ۳۷۳ امدادالاحکام)

**مسئله**:- په فال او نجوم باندي اعتقادلرل جائزنه دی يوازي په خدای ﷻ اعتقادلرل ضروري دی داشيان صحيح ګڼل اوورباندي باوردرلودل شرک دی په صحيح ګڼلوئي دايمان خطره ده او فال کتل هم منع دی (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ ۸۲)

## دجنتري وړاندوينه

**پوښتنه**:- په جنتري کي وړاندويني ليکلي وي هغه کتل او ورباندي عقيده درلودل څنګه دی؟

**ځواب**:- په دی کي ځيني شيان په حساب پوري اړه لري (شرعي نه دی) لکه درېل ګاډي وخت معلوميدل چې فلانی ګاډی به فلانی

ستیشن ته په دو مره بجورسیږي ځیني شیان هسي دعوامو د مایل کولولپاره وي ...خوپه شرعي لحاظ په دي اعتماد کیدلای نه شي. نه دي ددي مقصدلپاره ګوري. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۱۱۳)

**زماني ته بدویل**

**مسئله** :- دجاهلیت په زمانه کي دخلکو دا عمومي عادت ووچې کله به ورته کوم تکلیف ورسیدی یابه په کوم آفت اومصیبت کي اخته شول زماني ته به ئي بد ،ردویل (لکه نن چې هم دځیني ناپوهانو عادت دی) رسول الله ﷺ خلکوله دي کارڅخه منع کول ځکه زمانه په خپل ذات کي څه شی نه ده. دزماني بدلون ټول دالله ﷻ په قدرت کي دی کوم ښه والی،بدوالی،مصیبت یاراحت چې زماني ته منسوب کوي په اصل کي هغه دخدای ﷻ له لوري دی اوهغه ذات فاعل حقیقي دی نوکه زماني ته بدویل کیږي هغه خدای ﷻ ته بدویل دی. اوداکفریه مکلمات دي ځان ساتل ورڅخه لازم دی.

**کونګ (بُوم) منحوس (سپیره)ګڼل**

**مسئله** :- ځیني کسان کونګ منحوس ګڼي دهغه په هکله وائي چې هغه پرهرځای کښیني هغه خرابیږي نوځکه هغه منحوس دی خودابالکل غلطه خبره ده. نه کونګ منحوس دی اونه دهغه په رږغ کوم ځای ورانیږي. دایادولرئ چې هغه نعري وهي الله ﷻ یادوي آیادالله ﷻ په یادکي نحوست دی لاحول ولاقوة الابالله.

هو ! داخبره شته چې کونګ یوداسي ځای کښیني چې هغه ګوښه وي نوهغه په ورانیوکي کښیني،داسي نه ده چې هغه کښیني نوځای ورانیږي هغه په وران شوي ځای کي کښیني. ځایونه

زمونږ د ګناهونو له امله په ورانو ځايونو بدل شوي وي او د اوراني زمونږ ګناه ده نه د کونګ. نو مونږ ګنهکاريو نه داچې کونګ منحوس دی. دا باور کول چې په ځينو شيانو کي نحوست دی دا غلطه ده (اغلاط العوام مخ ۳۰)

**مسئله** :- که په کوم کور کونګ کښيني يا څوک کونګ ويني بيا باور باندي مصيبت راشي او بيا هغه د کونګ له راتلو څخه ګڼي داهسي توهم پرستي ده.

په اسلام کي د نحوست تصور نشته خو کونګ (بوم) ورانيو ته ورځي. دا چې کوم څوک يا قوم د هغه مستحق وي ځايونه ئي وران شي او کونګ هلته کښيني خو د هغه نعري د مصيبت سبب نه دي بلکه د انسان بد عملي دوراني او د کونګ د راتلو سبب دی.

(آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۳۵۸)

**څاروئ (حيوانات) منحوس ګڼل**

**مسئله** :- ځيني خلک آسونه او نور څه منحوس ګڼي په دي کښ هم کوم اصل نشته يعني داکوم شرعي شی نه دی تول واهيات دي، د خلکو خپل عيبونه په نورو کي په نظر ورځي. مصيبت ورته د خپلو ګناهونو له بدوالي ورته راځي خو نورو ته ئي منحوس وائي هغه آس داسي منحوس دی، هغه غويي او بل څه منحوس دی يا وائي هغه څاروي هغه مهال نعري وهلي نو داکارونه وشو يا وائي د هغه نعري څخه وباء ناروغي يا نور څه راغلل (يا پشي ورته په لاره کي تيره) داتول بده عقيده او بد شاګوم دی.

**مسئله** :- ځيني ميرمني وني منحوسي (بدشګون، بدشاګومي) ګڼي داهم ورانه عقيده ده. (اغلاط العوام مخ ۳۱)

**مسئله** :- مشهوره ده که مالگه په ځمکه توي شي یاپه ځمکه ګرمي اوبه تویي کړي دقیامت په ورځ ځمکه ورڅخه بدل اخلي. دابي اصله خبره ده کوم شرعي حیثیت نه لري. (اغلاط العوام مخ۴۸)

**دګوتوټکان ایستل منحوس بلل**

**مسئله** :- اسلام نحوست (بدشګوني ،بدفالي ،بدشاګومي) ته قائل نه دی. خوپه لمانځه کي دګوتوټکان ایستل مکروه دی اوله لمانځه بهرهم دګوتوټکان ایستل مناسب نه دی یوعبث کاردی.
(آپ کي مسائل توک ۸ مخ۱۳۴)

**دزیان رسیدلوپه وخت کي خوک منحوس ګڼل**

**مسئله** :- کله چې چاته کوم زیان ورسیږي یاپه کوم مقصوداوموخي کي ناکام شي نووائي(نن سهارمي دچادکوریوغړی (نفر) ویني آیادکورغړی دومره بداومنحوس وي چې یوازي په لیدلوئي تولـه ورځ بده تیریږي ؟ په اسلام کي دنحوست اوبدفالي تصورنشته دایوازي توهم پرستي ده . (آپ کي مسائل توک۱ مخ ۳۷۵)

**ایاپه پرده کي نغښتی ماشوم نیکمرغه دی؟**

**پوښتنه** :- ځیني ماشومان دزیږیدلوپه وخت کي په یوه پرده کښی نغښتي وي ،ځیني خلک داوائي چې داپرده ښه یي چې داماشوم خورانیکمرغه دی آیاداصحیح ده؟

**ځواب** :- داپرده عموماً خښیږي دهغي ساتل یاپه هغي کی دماشوم دنیکمرغي خبره په قرآن اوحدیث کي نشته. (آپ کي مسائل توک ۸ مخ۱۴۰)

**کوم ځای منحوس ګڼل**

**پوښتنه** :- آیا دځیني ځایونو باندي دنحوست باوردرلودل صحیح ده او که څنګه ؟

**ځواب** :- دنحوست عقیده درلودل خوجائزنه ده خوداعقیده صحیح ده چې ددي ځای آب او هوا ښه نه ده. اوورڅخه داسي ځای ته چې هوائي ښه وي تلل جوازلري. (امدادالاحکام توک۱ مخ۱۳۹ومظاهرحق)

**دنظرکیدلوحقیقت**

**پوښتنه** :- له مشرانو څخه اوریدل کیږي چې فلانی شخص نظرشوی دی نوېي کټه ورته کمه شوي ده یاېي خدمت ختم شوی دی یانورڅه وایي. که مهرباني وکړئ اودنظرکیدلوحقیقت راته وښیاست؟

**ځواب** :- په صحیح البخاري کتاب الطب باب العین کي حدیث شریف راځي (العین حق) یعني نظرکیدل حق دی حافظ ابن حجر رحمة الله علیه په فتح الباری توک ۱۰ مخ۲۰۴کي، په دي هکله دبزارله مسند څخه دجابر ﷺ روایت رانقل کړی دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: (تر قضأ اوقدر وروسته ډیرکسان له نظرکیدلو مړه کیږي .) له دی څخه ښکاري چې له نظرلګیدلو څخه کله خلک ناروغان کیږي اوپه ځیني صورتونوکي دناروغي انسان مړینې ته رسوي. نورزیانونه په دي قیاس کیدلای شي. په حدیث شریف کي دي: (څوک چې یوشی وویني په سترګوورته خوږ ولګیږي که ماشاء الله لاحول ولاقوة الابالله) ووائی هغه نه نظرکیږي. (آپ کي مسائل توک۱ مخ۳۷۸)

**مسئله** :- دزیږیدلو په وخت کی میندی دخپلو ماشومانو په غاړویالاسونوتوري تړوتي ددي لپاره تړي چې نظرنه شي یاېي په

سینه یا سر د تور رنګ نښانونه وکړي د ایوازي د توهم خبره ده په شریعت کی کوم اصل نه لري (آپ کي مسائل توک ۱ مخ۲۷۲)

**مسئله** :- که تکي لګول داعتقاد خرابي نه وي، مقصد پکښي داوي چې ماشومان بد شکله کړي توري ټاپي وراندي لګوي ترڅو نظر نه شي. داجوازلري .(آپ کی مسائل توک ۸ مخ۱۲۵)

**مسئله** :- نظر کیدل حق دی له هغي څخه ځان ساتل جائز دی خو چې دځان ساتلو طریقه د شریعت مخالف نه وي.
(آپ کي مسائل توک ۸ مخ ۴۵۳)

**دبدنظرلپاره مرچ سوزول**

**پوښتنه** :- که په ماشوم یا څاروي بدنظرولګیږي میرمني اووه داني مرچ یاد رخت اووه ټوټي ماشوم یا څاروي ته تراشاري کولوورو سته اورته اچوي، دا طریقه جوازلري؟

**ځواب** :- دبدنظر دلیري کولو لپاره په مرچ یابل شي څه ویل او اورته اچول صحیح دی خو چې د شریعت خلاف څه شی ورباندي ونه ویل شي مثلاً دديب یا ديوتا یا بل څه نوم ورباندي نه واخیستل شي یا له شیطان څخه مرسته ونه غوښتله شي .(فتاوی محمودیه توک۱۵ مخ۳۵۰)

**بدنظراوعصري ساینس**

له ام سلمی رضی الله تعالی عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ یوماشوم ولید په رنګ کي ئي سفعه (زیړوالی) وورسول الله ﷺ وویل چې دابه دم کړم ځکه ورباندي نظرلګیدلی دی.
(بخاری اومسلم)

په حدیث شریف کی رسول الله ﷺ فرمایي: (العین حق) یعني بدنظر حق دی. (رهبرزندګی)

لـه ابو سـعيد خدری ﷺ څخـه روايـت شـوی دی چـې رسـول الله ﷺ دجنيـاتو (پيريـانو ) لـه شراو دانسانانو له بدنظر څخـه پنـاه غوښتي ده کله چې معوذتين نازل شول رسول الله ﷺ نور څه ترک کړل همدا به يي لوستل (ترمذی ،ابن ماجه )

بدنظراو دهغه کارپه واقعه کی شته حق تعالی ﷻ په ځيني سترګو کي داسي اغيزاېښی دی چې که څه شي ته وګوري هغـه تـه زيـان رسولای شـي. درسـول الله ﷺ ارشـاد دی: کـه کـوم شـی لـه قـضاء اوقدرڅخـه وړاندي والی کولای هغه به نظروای. ځينی خلک ليدل شوي دي چې يوازي په يوځل کتلو سره انسان ،ځاوري روح والا (ژوندي ) شيان تباه کوي. په دي ترڅ کي دقرآن کريم تـلاوت ښـه دی. آيا ساينس بدنظرتـه قائل دی؟

**دپيراسائيکالوجسټ تحقيق**

دغيرمرئي (مخفي اوپټ ) علومو دتحقيق نو پيراسائيکالوجسټ دی ددي فـن دمـاهرينو لـه تحقيـق سره سم. دهر انسـان لـه سـترګو څخه غيرمرئي امواج (چارجونه يابرقی امواج ) راوزي داچارجونه دپوست دمساماتوله لاري بدن تـه ننوزي دجسم دودانولو يـاورانولو سـبب ګرزي که همدا موجونه ياچارجونه مثبت وي له هغوئ څخـه انسان تـه ګټه رسيږي اوکه منفي وي نوورته زيـان رسوي. نودبدنظره خلکولـه سترګو څخه همدامنفي چارجونـه راوزي اودومـره ځـواک پکښـي وي چې دجسم نظام وران ويجاړ ګرزوي.

چايوي ښکلي څهري ته وکتل اوپه همدي غيرمرئي شعاع ئي دهغـه شخص څهره (شکل ) توره کړه ،داشعاع په وينه کی تورو الی زياتوي

او دخهري رنګ تورګرزي. لنډه داچې درسول الله ﷺ داارشادحق دی چې (العين حق) دبدنظرد قرآن دی اودمنفي اغېزضدي معوذتين (سورة فلق اوناس) دي. (سنت نبوي اوجديدساينس مخ۲۲۷)

**دوباء سيمه پريښودل**

پوښتنه (۱): چيري چې ناروغي خپره وي آيا له هغه ځای ځخه تلل جائزدی.

(۲): مثلاً کوم ښارته څوک لاړشي هلته وباء خپره شوه، هغه شخص له کارځخه فارغ شو آيابيرته کورته راتلای شي. ياهلته دوباء ترختم پوري اوسيدل ضروري دی.

(۳): دغه ځای هستوګن بل ځای ته تللای شي؟

(۴): دآب اوهوادبدلون لپاره دوباء ځايونه پريښودل اوځنګل ته تلل څنګه دی؟

جواب(۱): که چيري وباء يادطاعون ناروغي خپره شوي وه په دی عقيده چې په تيښته به له دې ناروغي اومړيني ځخه خوندي شي، تلل ورځخه ناجائزدی اوګناه ده، مړينه دخدای ﷻ په حکم کيږي ده که ئي وخت راشي، نونه ګرزي دجاهليت په زمانه کی داعقيده وه چې له کوم ناروغ سره څوک کښيني ياورسره ډوډۍ خوري هغه بيماري ورته رسيږي. رسول الله ﷺ وفرمائل: (لاعدوی) يعني پرته دخدای ﷻ له حکم ځخه بيماري بل ته نه ورځي.

يوځل رسول الله ﷺ يودجذام ناروغ ترلاس ونيو دخپل خوراک په لوښي ئي ورسره ګډکړ. مطلب داچې دخدای ﷻ دحکم اوالهی تقديرځخه پرته هيڅ کيدلای نه شي. خودعقيدي دخوندي

ساتلو لپاره شريعت تعليم ورکړی چې وبايې سيموته پرته له ضرورت ځخه مه ځی او مه له هغه ځخه تيښته کوئ. ځکه که هلته ورشئ نو ضعيف العقيده خلک که ناروغ شي وائي دلته په راتلو مريض شوم خو تيښته کوونکي وائي په راتلوله مرض ځخه خوندي شوم کنه ورباندي اخته کيدم. تيښته کوونکي نورهم پريشانه کوي او دهغوئ دکم همتي سبب گرزي. دهمدی حکمتونو او مصلحتونولپاره رسول الله ﷺ هدايت کوی (چيري چې وباء خپره شوي وي هلته مه ځئ او که هلته ياست دتيښتي په نيت ورځخه مه ځئ.)

(بخاري شريف توک۲ مخ۸۵۳) مسلم توک ۲ مخ۲۹)

په شريعت کي دليري او سيدلو عقيده يوازي دعقيدي او ايمان د ساتلو لپاره دی. په دي خاطرنه ده چې له مرض ځخه خوندي شي او دا حکمونه هم وجوبي نه دي. په حديث شريف کي راځي: (فراراً منه) يعني له وباء ځخه دتيښتي په نيت مه ځئ. ددي توروپه تشريح کی ليکي: که پرته له تيښتي دبل غرض لپاره له هغه ځای ځخه لاړشي کومه خبره نشته. خو شرط پکښي دادی چې عقيده ئي کلکه وي. په فتح الباري اودرمختارمع شامی توک ۵ مخ ۲۲۱کي راځي چې که دچا عقيده داوه چې هرڅه دخدای ﷻ په تقديرکي دي. دخدای ﷻ له حکم ځخه پرته هيڅ کيدلای نه شي. نو هلته تلل او له هغه ځای وتل جائزدی او که ئي عقيده داسي نه وه نو دوتلو او ورتلو ورته اجازه نشته ترڅوئي عقيده خوندي وساتله شي.

(۲): هو! راتلای شي. دوباء ترختم پوري هلته هستوگنه لازمه نه ده. که له کار ځخه فارغ شونو تلل ئي تيښته نه ده. بيا هم دنيت سموالی ضروري دی.

(۳): هو ! دآب اوهوا تبديلي لپاره له ښار څخه ځنګل يا اطراف ته تلای شي خونيت به ئي داوي چې دآب اوهوا بدلون هم يو علاج دی.
غرض دا چې دوباره له سيمي څخه دفرار او تيښتې په نيت تګ نشته.
په خدای ﷻ توکل کول په صبر او همت پاته کيدل په کار دی. که ئي تقدير کې وو ورته راځي او دشهادت درجه به ورته حاصله شي. مرګ په تيښته نه ګرزي نو په تيښته کولو ولي ايمان خرابوي.
ډاکټران او حکيمان ځيني ناروغۍ متعدي ګني، هغوئ ته ئي جراثيم (مکروبونه) ثابت کړي دي. مونږ ته ددي دترديد ضرورت نشته.
خو دا هغوئ ته هم دا لازمه ده چې ومني ناروغي په خپله متعدي او مؤثره نه ده بلکه دخدای ﷻ په تقدير کې ده که ورته دخدای ﷻ حکم نه وو نو ذري په خير هم اثر نه لري.
(فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۳۷۱ دنووي ټوک ۲ مخ ۲۲۸ او فتح الباري په حواله)

**له مجذوم ناروغ سره دتعلق لرلو حکم**

**مسئله**:- په دې هکله په دوو خبرو بايد ښه وپوهيږو. يو دا چې ځيني خلک قوي المزاج وي داسي ناروغان ويني له هغوئ سره نژدې وي تي او په طبيعت کې ئي کوم بدلون نه راځي خو ځيني بيا کمزوري وي هغوئ داسي ناروغان ليدلای نه شي او دهغوئ ناسته ولاړه زغملای نه شي.
دوهمه دا خبره ده چې شرعي احکام دقوي او کمزورو ټولو لپاره دی. بلکه دکمزورو مراعات پکښې ډيرشوی دی. لکه چې امام ته امر دی چې په لمانځه کې دکمزورو خيال ډير وساتئ.
په دې دوو خبرو ترپوهيدلو وروسته به اوس پوه شو چې رسول الله ﷺ په خپله له مجزوم مريض سره ډوډۍ خوړلي ده. لکه په حديث شريف

کي چې له جابر ﷺ څخه روایت شوی دی وائي چې: رسول الله ﷺ دمجزوم لاس وينوی پر لوښي ئي ورسره کښيناوو ورته وئي ويل: دالله ﷻ په نوم سره ئي وخوره په الله ﷻ بروسه (باور) کوه.
(ترمذی توک ۲ مخ۴)

په ترمذی شریف کي داسي واقعه له عمر ﷺ څخه هم رانقل شوي ده. گواکي رسول الله ﷺ په خپل عمل سره څنگه کړي ده چې مجذوم دنفرت او کرکي وړنه دی. خو داچې کمزوري خلک ددي دزغم حوصله نه لري نو دهغوئ دفطري کمزوري مراعات شوی ده او هغوئ ته ئي دځان ساتني امر کړی دی. (آپ کي مسائل توک ۸ مخ ۱۲۲ و امداد الفتاوی)

## پر انساني ژوندباندي دمعدني دبرواغيز

**پوښتنه**:- خلک چې گوتي په گوته کوي په هغوئ کي دخپل نوم دستورو په حساب يو ډبرين غمی لکه عقيق يافيروزه يابل شی لگوي آيا په اسلام کي داجوازلري؟

**ځواب**:- ډبره دانسان پر ژوند اغيزنه لري، دانسان اعمال اغيزه لري.

**مسئله**:- په ډبرو (غميو) انسان مبارک کيدلای نه شي. دانسان اعمال هغه يامبارک اويا ملعون گرزوي. ډبري مبارک يانامبارکي گڼل دعقيدي فساد دی. له دي څخه توبه کول لازم ده.
(آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۳۷۶)

## دفيروزي دډبري اصل

**مسئله**:- دډبرو په کاميابي اوناکامي کي دخل نشته. دعمر ﷺ دقاتل نوم فيروزؤ. دهغه دنوم دعامولولپاره سبايانود (فيروزي ډبره) په متبرک حيثيت وښودله. دفيروزي دبد مرغي اونيک مرغي (نحس ياسعد) تشخص دسبايي افکاروزيږنده ده. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۳۷۷)

### د ډبرو په اغیزعقیده درلودل

**پوښتنه** :- ډیر کسان په مختلفو مونود ډبرو د غمیو ګوتي په ګوته کوي یاپه غاړه کي ځوړند کوي اووائي چې فلانۍ ډبره (غمی) زماپه ژوند ښه یابداغیزلري اودهغوئ پر دی اثرعقیده هم لري په شرعي لحاظ دهغوئ پر اثرعقیده لرل اود سروزروګوتي په ګوته کول څنګه دی؟

**ځواب** :- ډبري دانسان په ژوندا غیزمن نه دي. دانسان نیک یابد عمل دهغه دژوند په سمبالښت یاوراني اثرلري. دډبرو په اغیزباور درلودل د مشرکوقومونو عقیده ده، دمسلمانانو نه ده.

دسروزروګوتي د سړي لپاره حرامه ده. (آپ کي مسائل توک ۱ مخ۳۷۸)

### دګوتي ډبره (غمی) اونوی ساینس

انس ﷺ وائي: درسول الله ﷺ ګوتي دسپینوزروه اوغمی یې حبشي وو. (ترمذی، شمائل ترمذی)

رسول الله ﷺ دسپینوزروګوتي په ګوته کړي ده ،غمی ئې هم دنقري وواودعقیق دغمي ګوتي ئي هم په ګوته کړي ده. کله به ئي په ښي اوکله هم په چپي لاس وه خوډیروخت به ئي په ښي لاس وه. غمی به ئي دورغوي لوري ته وو. (تنویرالزهار رهبرزندګی)

رسول الله ﷺدعقیق غمی استعمال کړی دی داله حدیث شریف څخه ښکاره ده خودائي ددي لپاره استعمال کړی نه ده چې هغه ستونزي ورته حل کړي بلکه دحدیث دپوهانوله ویناسره سم ئي دښکلالپاره استعمال کړي ده. (نبوي سنت اوجدید ساینس)

### دګوتي په ګوته کول

**مسئله** :- ځيني کسان دلاس ګوتي په ګوتو کوي او دې برووړي وړي توتي پکښې ږدي. ځيني خلک خوئي دشوق لپاره استعمالوي خوځيني ئي په دي نيت په ګوته کوي يائي په غاړه کوي چې هغه ګټه لري او انسان له زيان څخه ساتي. خويادولرئ چې دهغوئ په مستقل اغيز باور درلودل حرام دی بلکه يوډول شرک دی خوکه داباوروربانـدي نـه وي بيـائي اجـازه شـته. کـه يـوه ګـوتي وي دسپينو زرووي. يوغمی ولري (اوسرې دي غمی دورغوي خواته اوميرمني دي ئي غمی دلاس دشالورته کړي )

**مسئله** :- ځيني دپښو په ګوتو يادلاس په ګوتو فلزي تارترې داهم يوډول شرک دی. (که کوم طبيب دعلاج لپاره وربانـدي څه ترې هغه خبره بيله ده ) *(محمدرفعت قاسمی )*

**مسئله** :- ځيني بياداوسپني ګوتي په ګوته کوي اوهغه دروغتيالپاره ګټورګڼي. داناجائزدی اوپه دی عقيده ئي په ګوته کول چې دابه زمونږ کاروکړي کفردی .که کومه ناروغتياولري علاج کول وربانـدي جائزدی. همداسي دمس ،ژيړاواوسپني ګوتي په ګوته کول منع دی.

**مسئله** :- ځينی سړي يا ميرمني په لاس ياپښه کي دمسو ،اوسپني يـاژيړوکړئ اچوي اووائـي دادغريب نوارلـه دربارڅخه راغلي دی اوهغه بابرکته ګڼي داهم ناپوهي ده.

**مسئله** :- لـه پاچا ،قاضي اودموقوفه مـال لـه متولي پرتـه بـل چاتـه دګوتي په ګوته کول پرينښودل افضل دی.

**مسئله** :- دګوتي په مسئله خلک پوه نه دي. په رواجی ډول ئي په ګوته کوي. که په اتفاقي توګه ورڅخه څوک پوښتنه وکړي چې ګوتي

په ګوته کول څنګه دی؟ وائي داسنت دی. حال داچې داسنت نه دی. که سنت وای نولوصحابه وو به په ګوته کړي وای (رسول الله ﷺ ګوتي دمهرلګولولپاره په ګوته کړي وه)
له هغه یادشوي کسانوسره که نورهم څوک ګوتي په ګوته کړي جوازلري خوغمی به ئي دورغوي لورته وي ګوتي به یوه وي. دګوتي نه په ګوته کول افضل دی. که دغسل په وخت کي ترګوتي لاندي دوبښته په اندازه ځای وچ پاته شي غسل اواودس نه صحیح کیږي. چې سم اودس ونه شي نولمونځ هم نه کیږي نودګوتي پرېښودل غوره دی.
**مسئله** :- ځیني دسرویاسپینوزرویامسوکړی داولیاوو په نوم په پوزه یاغوږکي اچوي داهم حرام اوشرک ده. دایادولرئ چې انبیاء علیهم السلام اواولیاء دګټي اوزیان رسولوجوګه نه دی نوداوسپني، مس اوژیړوتوتي به څنګه ګټه ورسوي اودهغوئ حقیقت به څه وي. داهم په یادولرئ چې دالله ﷻ دولی کفراوشرک له شائبې څخه پاک وي اوداتعلیم تول مخلوق ته ورکوي آیاهمدالویان به داحرکت خوښ کړي؟ نه هیڅکله نه. دایوازي دناپوهي له امله دی. فکرنه کوي چې دقیامت په ورځ به ددي انجام څنګه وي. (شریعت یاجهالت مخ ۵۰۰دمسلم ټوک ۲ مخ ۱۱۲ په حواله - مشکوة ټوک ۲مخ ۲۲۲- شمائل مخ ۸۲ فتاوی عالمګیري ټوک ۴ مخ ۲۹۵عین الهدایه ټوک ۴ مخ ۱۳۳)

**ایاپه تقدیرکي تبدیلي ممکن ده ؟**

**مسئله** :- دالله ﷻ په علم کي دهرشي لپاره یوه نقشه شته هغه چې ظهورکوي هغه ته تقدیروائي. په هغي نقشه کي تبدیلي نه راځي خوځیني شیان مطلق وي چې دهغوئ اظهارورانـدي دقضاء

اوقدر کارکو ونکوته نه وي اوقدسه زړونوته ئي هم انکشاف نه وي اوداعدم ظهورئي دمتعليق لـه وجې ده همدا خلک مبدل پيژني، تعليق ئي کله تردعاپوري وي او کله تربل شي پوري.
(فتاوی محمودیه توک ۱۵ مخ ۱۳۲)

## دعقيدي خرابي

**مسئله** :- مشهوره ده چې کوم شخص نوی مسلمان شي، هغه به څه ورکړه کوي کنه ،نه پاکيږي. داخبره اصل نه لري.

**مسئله** :- مشهوره ده چې څوک ښکنځاوکړي ترڅلوېښتو ورځوايمان ورڅخه ليري وي نوکه په موده کي مړشي نوبې ايمانه مړکيږي. داهسي غلطه خبره ده. هو! دښکنځاکولوګناه بيل شی دی.

**مسئله** :- مشهوره ده چې دخوب په مهال پښي دشمال قطب ته مه کوئ ددي هم کوم اصل نشته.

**مسئله** :- دځينوناپوهانودستور(رواج) دی چې کله دکورڅخه دکرلولپاره داني وړي په هغه ورځ داني نه پخوي داسي عقيده لرل ګناه ده داخيال اوفکردي ختم کړي.

**مسئله** :- دځينو کسانوداعقيده ده چې که دورځې ډوډی مه خوره هسی نه چې مسافرلاره ورکه کړی داسی عقيده لويه ګناه ده .

**مسئله** :- ډيري ميرمني دچيچک اولويودانوعلاج کول بدلولي اوځيني دابيماري دپيريانانواثربولي خوداخيال بالکل غلط دی.

**مسئله** :- ځينی ميرمني دچيچک دناروغي په وخت کي قطع کول اوڅه پخول بدبولي اووائي مرض ورسره ډيريږي. ددي کوم اصل نشته. خوکه ډاکټراوطبيب په نظراحتياط وکړي نوبيله خبره ده.
(اغلاط العوام مخ۷)

**مسئله** :- ځیني له داسي میرمني سره چې د یراولادئي مري ناسته ولاړه نه کوي او خپل ماشومان هم ورځخه راګرزوي دا ډیره بده خبره ده ،داسي کول ګناه ده. په شریعت کي هیڅ اصل نه لري.(اغلاط العوام مخ۴۲)

**دځان په بدل کي وزه حلالول**

**پوښتنه** :- څاروي په دي نیت حلالول چې دروح بدل روح کیدلای شي. که دڅاروي روح ولاړه شي دانسان روح به پاته شي ،الله ﷻ به دڅاروي روح ومني اودانسان روح به نه اخلي آیادا صحیح ده ؟

**ځواب** :- (۱): ژوندي څاروي صدقه کول خوراغوره دی. دمریض دشفاء لپاره که خاص دخدای ﷻ لپاره حلالیږي دامباح دی. خواصل خبره داده چې دپورتني مقصد لپاره صدقه کول شته خو نه روح دروح لپاره فدیه.

(۲): داخیال بي اصله دی اباحت یوازي په دي خیال دی چې دالله ﷻ لپاره نفس قرباني کړي اوداخیال وشي لکه مالی صدقه دالله ﷻ درحمت دجلب وسیله ده اوالله ﷻ به په خپل رحمت سره مریض ته شفاء ورکړي. (کفایة المفتی توک ۵ مخ ۸۵۵)

**مسئله** :- ځیني کسان په صدقه دنفس بدله نفس ضروري ګڼي. وزه یابل څاروي ټوله شپه له مریض سره ساتي اوبعض دمریض لاس په څاروي وهي اوبیاهغه څاروي صدقه کوي. یائي له مریض سره نژدي حلالوي اوغوښه ئي ویشي اودائي باوروي چې مریض په څاروي باندي لاس ووهي ټولي بیماري اوبلاوي ورځخه وړي اوپه خیرات هغه ځي ګواکي دنفس بدله نفس کیږي خودا اعتقاد دشریعت خلاف ده.

**مسئله** :- يو عام رواج دادی چې د ناروغي په وخت کی وزه حلالوي. خو د نفس بدله نفس يعني فديه يوازي په عقيقه کی شته بل ځای ئي ثبوت نه دی راغلی. که داوائي نفس د نفس بدله نه بولي خو صدقه کوي او هغه رد بلاده يعني پريشاني ليري کوي او دا په حديث شريف کي يادشوی دی. خو زه وايم چې که دغسي وي نو دوزي د بيې صدقه کول موولي زړه نه اخلي؟ بل له دي څخه معلوميږي چې حتماً په زړه کی غلاشته او حلالول د مرض په ليري کيدلو کي زيات اغيزمن ګڼل او دا فاسده عقيده په زړه کي ګرزي چې نفس د نفس بدل کيدلای شي. ځيني کسان د وبا يا بلی بيماري په وخت کي وزه يا بل څاروي ذبح کوي او عقيده ئي هم دغه وي چې دا شرک دی.. بعضی کسان د فديي په نوم څاروي ذبح کوي دا هم يوازي کذب او دروا غ او باطل دي.
(اغلاط العوام مخ ۲۳)

**مسئله** :- د شفا لپاره د خدای ﷻ په نوم نذر کول جائز دی خو بهتره داده چې پرته له نذر څخه ئي صدقه کړي او له الله ﷻ څخه د صحت او روغتيا غوښتنه وکړي. (آپ کي مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۱)

**له بيماري څخه دشفا په هيله دڅاروي حلالول**

**پوښتنه** :- که څوک ناروغ وي که دهغه له خوا کوم څاروي حلال شي او غوښه ئي بي وزله کسانو ته ورکړه شي آيا دا جواز لري؟ داددي لپاره چې الله ﷻ د همدي صدقي له امله ورباندي رحم وکړي او يائي روح په اساني سره ولاړ شي؟

**ځواب** :- له آفتونو او ناروغيو څخه د خوندي کيدلو لپاره د صدقي او خيرات ترغيب ورکړي شوی دي. خو د عوامو عقيده داوي چې څاروي حلالول ضرور دي دی او نفس د نفس بدله ګڼي. په شريعت کي

ددې کوم ثبوت نشته دا دعوامو خپل بدعت دی. که څوک دا عقیده ونه لري خو دا چې دبدعت تائید دی نو دا نا جائز دی بل ډول صدقه او خیرات دې وکړي. (په صدقه کې پټ والی مطلوب دی خو دوزې په حلالولو کې دا سې کیدلای نه شي او په نقده صدقه کې دا ړو خلکو ګټه ډیره ده او د څاروي په بیه دا ړو خلکو اړتیاوې پوره کیږي.
*(محمد رفعت قاسمی)*

په شریعت کې له قرباني او عقیقې پرته بل ځای د څاروي حلالول ثابت نه دی. دا غلطه عقیده په بنو دینداره کسانو کې هم لیدله کیږي نو پر علماؤ لازمه ده چې ددې اصلاح ته پاملرنه وکړي او مدرسو ته چې په دې ډول څاروي ورکول کیږي هغه ونه مني. که علماء تري سترګې پټې کړي او هغه تري ومني دا د ګمراهي تائید دی. (احسن الفتاوی ټوک۱ مخ ۳۴۷)

**بابنو ته غوښه اچول**

د ناروغ له لوري څاروي صدقه کوي او غوښه ئې بابنو (یا کرګ، زغن، تپوس) ته اچوي تر څو ئې روح ژر ولاړ شي یا الله ﷻ ورته شفاء ورکړي دا دنا پوهانو د خرافاتو څخه ده. په شریعت کې کوم اصل نه لري. دا کار د غیر مسلمانانو (هندوانو) څخه راغلی دی دا خورا سخته ګناه ده. له مطلق صدقې سره آفت ځي او د نغدي په صورت صدقه خورا ښه ده یعنې څه پیسې یا مسکین ته ورکړي او یائې د کوم خیر په کار کې ولګوي. (احسن الفتاوی ټوک مخ ۳۶۲)

**مسئله** :- ځیني کسان د صدقې غوښه بابنو ته اچول ضروري ګڼي دا هم غلطه ده. په شریعت کې د صدقې مصرف معلوم دی بې وزله مسلمانان ئې ښه د مصرف ځای دی، بابښي ئې مصرف نه دی.
(اغلاط العوام مخ ۲۳ د اصلاح انقلاب په حواله)

**مسئله** :- په ناپوهانوکې يورواج دادی چې بابنوته غوښه ورکوي. ددېرو عقيده داده چې ناروغي دصدقي غوښي ته ځي هغه به انسانان نه خوري اوهغه بابنوته وراچوي. ددي کارهم کوم سند نشته داهم دشريعت خلاف ده. (بهشتي زيور توک ۲ مخ۵۲)

**مسئله** :- بازبابنوته غوښه اچول اوهغه دځان صدقه ګڼل هم عبث خبره ده خوکه کوم حيوان وږی وي څه شی ورکول ئي داجرسبب دی خوارانسان پرېښودل اوبازبابنوته غوښه اچول يوبې معنی حرکت دی (آپ کې مسائل توک۳ مخ۴۳۰)

## دناروغ لپاره خاروي ازادپرېښودل

**مسئله** :- يورواج داهم دی چې دناروغ سړي لپاره يوخاروي اخلي هغه په ځنګل کي آزادپرېږدي اووائي مونږدخدای ﷻ لپاره يوژوندی شی آزادکړ. الله ﷻ به دهغه په بدل کی زمونږدناروغ روح له مصيبت څخه آزادکړي. داعقيده چې روح دروح بدله ده په شريعت کي کوم اصل نه لري. په بي سنده خبره عقيده اوباورلرل په خپله ګناه ده.

**مسئله** :- يورواج داهم دی چې څه شی دخوړلوڅښلولپاره په لارکي ږدي دابالکل دکافرانورواج دی. دغيرمسلمانانو طريقه منع ده ،عقيده ورسره خرابيږي. دشرک اوکفرويره پکښي ده. داسي کارکوونکي داسي فکرکوي چې په دي مريض ددېواوپيري اثراوفساددی که دهغه په نوم څه شی ورکړل شي ،هغه خوشحاله کيږي اودامريضي اومصيبت ورڅخه ليري کيږي ،دادشرک يوښکاره کاردی داچې درزق بې ادبي کوي اوخلکوته تکليف رسوي لابله ګناه ده.

دصدقې اوخیرات سمه لاره اختیارول په کاردي. څه شی ممکن وي محتاج ته ئې ورکړي، که هغه پوهیږي کنه خو الله ﷻ خوشحاله کیږي اودهغه په برکت هغه بلااومرض دفع کیږي نوربې ګټې کار بلکه ګناه ده. (بهشتي زیورتوک ٢ مخ٥٣)

**دصدقې لپاره ځانګړی شی مقررکول**

**مسئله**:- ځینې کسان دصدقې لپاره یوخاص شی مقررکوي لکه ماش، دال یاتوررنګې شی. هغوئ بلاتوره ګڼي اووائي له توروالي سره ځې داټولي عبث خبري دي اودشریعت خلاف دي. په شریعت کې مطلق صدقه دبلادافع ده. خاص شی یاخاص رنګ په شریعت کې مقررشوی نه دی. (اغلاط العوام مخ٢٣)

**دشیخ احمدخوب په اړه عقیده**

**پوښتنه**:- یوه خپره شوي پاڼه رارسیدلي ده. داپاڼه ډیرچاپیږي اوویشل کیږي. دپاڼي په پای کې راغلي چې که ئې څوک مني اوتکثیرکوي ورته مالي ګټه رسیږي اوکه ئې څوک نه مني دهغه دزیان ویره ده. دهغي پاڼي متن دادی:

بسم الله الرحمن الرحیم. درسول الله ﷺ فرمان: رسول الله ﷺ په مدینه منوره کې یوه خادم ته بشارت ورکړی دی چې قیامت راتلونکی دی، دتوبې دروازه تړل کیږي، غفلت مه کوئ. له ګناهونو څخه توبه وباسئ. ددوشنبې له ورځې خلورورځې روژه ونیسئ، لمونځ کوئ، زکوة ورکوئ. که څوک له دې پاڼې څخه دري نوري ولیکي څوارلس ورځې به ورته خوشحالي حاصله وي. په بمبئ کې چاله دې پاڼې څخه دري نوري لیکلي وي دوه نیم زره روپئ ورته ګټه پاته شوه

اوچادادرواغ کنلي وه دزوی لاس ئي وچ شو. که ئي څوک تقسیم نه کړي ضروربه غم وويني دخدای ﷻ بنده یودوي پاني ولیکه ضروري ئي تقسیم کړه چې څومره زیاتي چاپ کړي هغومره ئي فایده زیاته ده.

ورونو! داخبره په یقین سره ومنئ، خدای ﷻ دي مونږتولوته توفیق راکړي، آمین

**یادونه**:- داپارچه له ځان سره ساتل ګناه ده.

**ځواب**:- حامداً ومصلیاً: دتوبي ددروازي بندیدل اودقیامت دراتلوخبري په حدیثونوکي ډیري راغلي دي، څومره چې وخت تیریږي هغوئ رانژدي کیږي. دي خبري ته دچادخوب ارتیانشته. له ګناه څخه دتوبه کولوحکم په قرآن کي ډیرځله راغلی دی. هروخت دي انسان توبه کوي په دنیاکي مصیبتونه اودخیرات سزاتول اودنفلي روژي نیولوفضیلت هم ثابت دی ددوشنبي اوپنجشنبي دروژي په هکله هم روایتونه ډیردي لمونځ اوزکوة داسلام له ارکانوڅخه دي.

لنډه داچې په دي کي داسي خبره نشته چې ثبوت ئي په خوب سره شوی وي. له دوشنبي څخه دڅلوروورځودروژي ثبوت نشته. دااصل نه لري یوازي په خوب دانه ثابتیږي.

ددین تبلیغ اوخپرول دامت مهمه فریضه ده له هغه څخه په مخالفت کولوکي سخت وعید راغلی دی. پاته شوه داخبره چې له دي پاني دري پاني لیکل اوخوارلس ورځي خوشحالي اوڅوک چې تقسیم نه کړي هغه ته غم رسیدل اویائي له ځان سره ساتل ګناه ده. داخبري تولي بي اصله دی، عبث دي یودوه پاني ورڅخه لیکل ضروري بل

جهالت دی. داسي خطونه دا ډیروخت خپریږي او دخوب لیدونکي نوم هم شیخ احمد ښئي او ډیر خرافات پکښې لیکلي وي مثلاً لیکلي وو: (سږکال دومره مسلمانان مړي او له هغوئ څخه یو یادوه تنه به جنت ته لاړشي او نور به دوزخ ته ځي) مشرانو تحقیق کړی دی نه په مدینه منوره کي دشیخ احمد په نوم کوم خادم شته او نه هلته دداسي خوب یادونه چا اوریدلي ده. په حقیقت کي دا داسلام ددښمنانو یو چل دی په همدي سره پر اسلام بدګماني پیداکوي چې له دومره مسلمانانو څخه یوازي یو یادوه تنه جنت ته ځي او نور دوزخ ته ځي له دي څخه اسلام ته څه ګټه ده؟

په تذکرة الخلیل فتاوی دارالعلوم کي داسي لیکلي دي: مونږ همیشه همداسي پاڼه پري (شکولی) ده. دخدای ﷻ په فضل مونه کوم غم لیدلي دی نه زمونږ او نه زمونږ د اولاد لاس وچ شوی دی. فقط والله اعلم. (فتاوی محمودیه توک ۵ مخ ۳۵۰)

## په استخاره کي غلطي

**مسئله**:- ځیني خلک استخاره داسي پیژني چې په هغې کی تیره یا راتلونکي واقعه ورته معلومه شي. خو په شریعت کي استخاره ددي مقصد لپاره نه ده نقل شوی. هغه دیوه کار په کولو او نه کولو کي د تردد دفع کوي نه دا چې پیښې معلومې کړي آن داستخاري په نتیجه یقین درلودل هم ناجائزدی.

## داستخاري حقیقت

**مسئله**:- خلک داستخاري په حقیقت نه پوهیږي. استخاره یوه دعاده مقصد ورڅخه اعانت علی الخیر ده یعني داستخاري په واسطه

انسان له الله ﷻ غوښتنه کوي چې هغه وکړه چې خیروي اوپه کوم کارکي چې مي خیرنه وي هغه مه راباندي کوي نوپه استخاره کولو ضروره ده چې کوم کارته ئي دزړه میلان وي هغه دي وکړي اوپه هغه کي خپل خیرمقدروګڼي بلکه دي اختیارلري چې دنورومصلحتونوپه مراعات هغه کارته ترجیح ورکړي اووئي کړي اوبیاپکښي خیروبولي خوپه لومړي صورت الهام شرعي حجت ګڼل کیږي اوداصحیح نه ده نوالزام ورباندي هم صحیح نه دی که څوک داسي پوهیږي خپله غلطي دي اصلاح کړي ځکه دااعتقادغلط دی.

**مسئله** :- تنبیه(۱): لکه څنګه چې تیره پیښه نه معلومیږي همداسي راتلونکي پیښه هم نه معلومیږي. داستخاري اثریوازي دومره دی چې په کوم کارکي ترددوی نوداچې کول ئي غوره دی اوکه نه کول ئي غوره دی. دامسنون عمل (استخاره) دوه اثره لري: ۱- زړه مجتمع اواطمنان پیداکوي

۲- ددي مصلحت اسباب پیداکیږي بله کومه اغیزه نه لري اوخوب لیدل هم پکښي ضروري نه دی. (اصلاح انقلاب اول)

تنبیه(۲): له ځینودیني مشرانوچې ځیني استخاري داسي رانقل شوي دی چې ورته په صراحت یااشاره ورته په خوب کي څرګندشوي دی ،هغه استخاره نه ده هغه دخوب لیدلوعمل دی دا اثرهم دي عمل لازمي نه دی. خوب کتل لیدل کیږي اوکله نه لیدل کیږي. که خوب ولیدل شي هغه هم تعبیرته اړتیالري. که په راحت سره وي بیاهم تعبیرئي ظني اواټکلي دی یقیني نه ده په هغه کی ډیري شبهي ډیري

وي. دا استخاره بلل مجازدی که ورته دانوم مقبول وو کنه دعوامو غلطي ده.

**مسئله**:- په استخاره کي دوه رکعته لمونځ اوداستخاري دعاضروردی نوربیده کیدل یاخوب لیدل ضروري نه دی دادعوامو تصنیف دی. خودا ممکن ده چې کله داستخاري اثرپه خوب کي ښکاره شي خوداهیڅکله شرط نه ده. (الفصل والوصل مخ۴۰)

**مسئله**:- ځیني کسان دهرنوی کارلپاره په هرحال کي استخاره کوي داصحیح نه ده. خبره داده چې استخاره دهرچالپاره نه ده. استخاره هغه چاته ګټوره ده چې خالي الذهنه وي اوکه په دماغ کي ئي خیالونه غوندشوی وي اوهغه لوري ته ئي زړه مائل شوی وي هغه سړي وائي ماته له استخاري معلومه شوه داسي نه ده هغه په خوب کي له مخیله څخه داخیالات راغلي دي. (الافاضات مخ۴۳۵)

**مسئله**:- داطریقه داستخاري نه ده چې اراده هم وکړي بیاهسي دنوم لپاره استخاره وکړي. استخاره ترارادي وړاندي کول په کاردی ترڅویوه لورته زړه سکون ومومي بیاهغه لورته اراداه وکړي. په دی کي خلک غلطي کوي. صحیح طریقه داده چې ترارادي وړاندي استخاره وشي بیاچې په استخاره زړه هرلوري ته ترجیح ولري هغه کاروشي.

**مسئله**:- داستخاري لپاره دشپي وخت ضرورنه دی دایوازي یورسم دی. داستخاري ترلمانځه ورسته نه خوب ضروردی اونه دشپي قید، هروخت مثلاً ماښپین دوه رکعته لمونځ وکړي اومسنونه دعاووائي اوزړه ته متوجه شي کښینې.

تنبیه: په ورځ کې څوځله استخاره کیدلای شي خویوځل کافي ده. په حدیث شریف کی یوځل راغلي ده (خودځوځلي کولو ممانعت ئي هم نشته ).

**مسئله** :- استخاره د تردد پر موقع کي کیږي. د تردد معنی داده چې دطرفینو مصالح برابروي. اوکه دیوه لوري ضرورت معلوم وي بیا استخاري ته ضرورت نشته.

**مسئله** :- که له وړاندي په رأیه کې یوه لورته میلان وي هغه دي ورکه کړي چې طبیعت یوه لورته شي بیادي استخاره کوي اوعرض دی کوي چې یاالله ﷻ : هغه چې راته غوره وي هغه وکړي. اوداد عاپه پښتو یابله ژبه هم صحیح دی خودرسول الله ﷺ الفاظ غوره دي.

(اغلاط العوام تهانوی مخ۱۱۲)

## پر قران کریم فال کتل

**پوښتنه** :- که چاته داسي شبه وي چې فال کتل بي اصله دی. په داسي حال کي چې له ځینو لویانو څخه په قرآن کریم یاد عارفانو پر کلام فال اچول منقول دی. نو دددي ځواب څه دی؟

**ځواب** :- دد ي جواب دادی چې ددي شبه منشأ مفظي اشتراک دی. یوه دشریعت اصطلاح ده اوهغه ثابته ده. بله دغلاتو (په شریعت کی ترحد اوښتونکو ) اصطلاح ده هغه غیرثابته ده. دي ثبوت بالسنه وعن الاکابر دادی چې که چ ته څه تشویش یافکروي نوپه ناڅاپي توګه یاقصدي دول دخوښي کوم لفظ واوري یائي وګوري داچې دالله ﷻ له رحمت څخه امید دهر مسلمان فریضه ده نو ددي فال کتونکی هم له دی څخه داهیله نوره غښتلي کیږی.

نو حاصل دادی چې د دې له تقوي څخه د رحمت هیله ده تردی وړاندی هسې اختراع او ابداع ده. یعني له الله ﷻ څخه د رحمت هیله د زړه دل او بس نوري خبري هسې تړل شوي دي. (اغلاط العوام مخ۳۲)

**دعملیاتو په کتابونو فال کتل**

**مسئله**:- نیک فال لیدل کیدلای شي، خو هغه دې یقیني نه ګڼي. نجومي او کاهن ته ورتلل او فال کتل له هغه څخه پټې خبري معلومول کبیره ګناه ده. په حدیث شریف کې دي (څوک چې نجومي ته ورځي او د هغه د خبرو تصدیق کوي په تحقیق چې له هغه شي څخه بیزاره دی کوم چې پر محمد ﷺ نازل شوی دی ) یعني کافر دی. دا په هغه صورت کې چې حلال ئي وګڼي او یا ور څخه د مطلب تشدید دی.
(رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۷۰) محمودیه ټوک ۱۸ مخ ۲۱)

**مسئله**:- پر قرآن کریم فال کتل حرام او ګناه ده او د افال د الله ﷻ حکم ګڼل ناپوهي ده. ځکه د قرآن کریم مخونه سره فرق لري. یو څوک فال ګوري یو آیت راشي او دوهم ئي ګوري بل آیت راشي چې مضمون ئي له لومړني څخه توپیر لري. دا هم کیدلای شي چې څوک پر قرآن کریم فال وګوري، کوم کار و رباندي وکړي پایله ئي ښه نه وي نو د قرآن کریم په هکله ورته بده عقیده پیدا کیږي. د دې نتیجه تر کفر پوري رسیږي.
په هر حال د امت علماؤ پر قرآن کریم فال کتل ناجائز او ګناه بللي ده.
مفتي کفایت الله په مجموعه کفایت المفتي کې لیکلي: له یوه ماشوم څخه چا څه زیورات وړي وو د خلکو په خیال کې یو شخص معلومیده او پر قرآن کریم ئي فال وکتی، د هغه سړی نوم وخوت کوم چې د خلکو ورباندي بدګماني وه. کله چې دا معلومه شوه هغه شخص مسجد ته لاړ د قرآن کریم پاني ئي پری کړی او ورباندي بولي ئي وکړي

(نعوذبالله) اووئي ويل: قرآن کريم هم درواغ دی اومولوي هم درواغ وائي (نعوذبالله) نوسائل دي ووائي چې داشخص په اسلام کي شامل کيدلای شي؟

**ځواب**:- په شريعت کی فال کتل منع دی اودمنع کيدلوئي دوي وجې دي:

اول: داچې علم غيب يوازي له الله ﷻ سره دی. ممکن نوم غلط وخيژي. که دچانوم وخيژي خداناخواسته هغه داسي حرکت ونه کړي لکه همدا شخص چې وکړ. له شريعت څخه خلاف ورزي همداپايله لري چې ومولېدله. داسي شخص چې له قرآن کريم اوعلماؤسره داسي ګستاخي وکړي کافردی. خوداسي کافرنه دی چې بياپه اسلام کي داخليدلای نه شي. بيادي توبه وکړي داخليدلای شي له بيافال کتلو څخه دی ځان وساتي ترڅوفال کتونکي ځان اوهغه څوک چې نوم ئي خيژي ګناه کارنه کړي.

(کفايت المفتی توک ۹ مخ۱۲۹. آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۳۶۵)

**مسئله**:- پر قرآن کريم باندی فال کتل ناجائزدی، فال کتل اووربانديِ باور کول په بل کتاب مثلاً ديوان حافظ ګلستان يانوروهم ناجائزدی. پر قرآن کريم ئي کتل سخته ګناه ده. ډيرځله په دی سره د قرآن کريم توهين کيږی اوياورته بده عقيده پيداکيږي. (کفايت المفتی توک ۹ مخ ۲۳۱)

**مسئله**:- دفال کتونکوداعقيده وي چې ګواکی الله ﷻ په قرآن کريم کي داخبر راکړی دی اوس ورڅخه خلاف کول ناممکن دی. کله چې ورته وويل شي چې داسي مه کوه. وائي صاحبه! آياپه قرآن کي غلط ليکل شوي دي؟ (اغلاط العوام مخ۳۱)

**مسئله** :- په سنت طریقه سره استخاره مسنون ده. په حدیث شریف کی ئي ترغیب راغلی دی خوفال کتل ناجائزدی. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۳۶۳)

**دتعویذگنډلو شرعی حیثیت**

**مسئله** :- دتعویذ اثرشته خوهغه هم دالله ﷻ په حکم سره دی (دهرشي واک اوهرڅه دالله ﷻ په واک دي) چاته دزیان رسولو لپاره تعویذ کښل دجادو حکم لري چې کښل ئي حرام او کبیره ګناه ده بلکه دکفرویره ئي ده. مثال ئي داسي دی لکه څوک چې په ناولتیا (مرداري) کي ولوېږي داسي کول حرام دی اوبد حرکت دی. که په ناولتیاکی ولوېږي جامی اوبدن ئي ضرور خرابېږی اوبدبوي ئي ولاړېږي. یوشی حرام اوګناه بله خبره ده خود ناولتیا اثري یوفطري شی دی. تعویذ که دجائز مقصد لپاره وي، جائزدی په دي شرط چې پکښي دګناه اوشرک څه پکښي ونه لیکل شي. دتعویذ کښلو لپاره دجواز دري شرطونه دي:

(۱) : دجائز مقصد لپاره به وي. دناروا مقصد لپاره به نه وي.

(۲) : الفاظ به ئي دکفراوشرک نه وي اوکه پکښي داسي الفاظ وو چې معنی ئي معلومه نه وه بیاهم ناجائزدی.

(۳) : تعویذ به مؤثر بالذات نه ګڼي . (آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۳۵۱)

**دطاعون ددفع لپاره** (لی خمسة اطفی بها ..) **ویل یاتعویذ کول**

**مسئله** :- داتعویذ ناجائزاوشرک دی. (احسن الفتاوی توک ۱ مخ ۴۸)

**مسئله** :- ځیني تعویذونه داسي دي چې دمنع کولووړدي یودطاعون تعویذ مشهوردی (هغه چې ناجائزدی بلکه دشرک الفاظ پکښي هم دي.

لی خمسة اطفئ بها حر الوباء الحاطمة
المصطفی والمرتضی وابناهما والفاطمة

دادپنځومبارکوکسانوتوموته دي. که کوم تأویل پکښې وته شي نومضمون ئې دشرک دی

**مسئله** :- یوه بله خبره هم دپوهیدلو وړده چې شیعه عموماً اوسني کسان هم د(نادعلی) مضمون دسپینوزروپه تعویذنقش کوي اودماشومانوپه غاړه کوي ئې خودنادعلی مضمون هم شرک دی ،هغه پریښودل په کاردی. مضمون دادی:

نادعلیامظهرالعجائب تجده عونالک فی النوائب
کل هم وغم سینجلی بنبوتک یامحمدوبولایتک .
یاعلی ایاعلی ایاعلی!

دامعلومه نه ده چې کوم بحردی نه طویل بحردی اونه هم قصیرلنډ)لومړنئ مصرع وړي اووروستنئ اوږدي دي. غرض داچې داپه شوق سره په غاړه کوي خوداجائزنه دی.

(اغلاط العوام مخ۱۱۱د الافاضات مخ۲۲۲په حواله)

## په تعویذمعاوضه اخیستل

**مسئله** :- قرآني آیاتونه لوستل اودم کول په حدیث شریف کې ذکرشوي دي. درسول الله ﷺ ، اوصحابوودامعمول راغلی دی. تعویذهم ددي یوشکل دی نوپه جوازکې ئې شبه نشته. اوهغه دتعویذپه حیثیت پیژندل کیږي. ځیني کسان دتعویذتأثیرقطعي اویقیني ګڼي، داصحیح نه ده. بلکه تعویذهم دعلاج اودرملني دنوروتدبیرونوپه څیریوتدبیردی ،ګټورکیدل یانه کیدل ئې دالله ﷻ په مشیت پوري اړه لري. ځیني کسان تعویذیوروحاني عمل ګڼي. داخیال هم داصلاح وړدی،روحانیت بیل شی دی،تعویذاونوریوازي دنیائي تدبیراوعلاج دی. څوک چې تعویذکاري هغه بزرګ بلل هم

غلطه خبر ده. ځيني خلک په دعا دومره باور نه لري لکه په تعويذ. دا هم دا صلاح کولو وړ خبره ده. دعا کول عبادت دی او تعويذ کوم عبادت نه دی او د کوم ناروا مقصد لپاره تعويذ حرام دی. (آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۳۵۲)

**مسئله** :- که دعا يو عبادت دی او دهغي معاوضه غوښتل يوه غلطي ده. نورو ظيفه، تعويذ چي څوک د دنيائي مقصد لپاره کوي د عبادت حيثت نه لري. دنيائي تدبير او علاج دي معاوضه اخيستل او ورکول ئي جائزدی نو چي د دي خلکو وظيفه او تعويذ کارورکوي يائي ورکوي دا شرعي مسئله نه ده. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۳۵۳)

**مسئله** :- داسي ګوتي ګوتمۍ چي ورباندي دالله ﷻ نوم يا قرآني آيت ليکل شوی وي، هغه په ګوته کول او بيت الخلاء ته تلل مکروه بلل شوی دی. (عالمګيري مصری توک ۱ مخ ۵۰)

## ايت الکرسی ويل اوزنګ وهل

**پوښتنه** :- په ځيني کورونو کی تربيده کيدلو وړاندي آيت الکرسی لولي او بيا زنګ وهي او داعقيده لري چي څومره د زنګ ږغ رسيږي کورله بلا او غله څخه خوندي وي. له دي سره د زنګه څه تعلق دی؟

**ځواب** :- داسي زنګ (شرنګوله) وهل حرام دی او داعقيده چي له زنګ وهلو سره بلاوی ليري کيږي او د غل غدوي مخه نيوله کيږي د ناپوهي توهم پرستي ده. آيت الکرسی لوستل صحيح دی او د حفاظت ذريعه ده. (آپ کي مسائل توک ۸ مخ ۲۷۲)

په الترغيب والترتيب توک ۳ مخ ۳۴۹ کي حديث شريف دی (آيت الکرسی چي چيري لوستل کيږي که هلته شيطان (شيطاني اثرات وي) ليري کيږي ) د دي په اړه داخبره تجربه شوي ده چي که د شپي آيت

الکرسی ولوستله شي اوبیده شي نوکورته غل غدوی اوناخاپي آفت نه راځي. خوزنګ وهل له حدیث شریف څخه ثابت نه دی. که داعقیده نه وي اودخپلو تجربواوخارونو لپاره ئي وهي هغه بیله خبره ده (محمد رفعت قاسمی)

**بدفالي اواسلام**

**پوښتنه** :- په اسلام کي دنحوست دبدفالي ،بدشګوني،بدشاګوم څه اهمیت دی. ځیني خلک پښه پر پښه ایښودل نحوست ګڼي. ځیني بیادګوتوتکان ایستل نحوست بولي. ځیني بیاوائي فلانئ ورځ منحوسه (سپیره) ده .... ددي حکم څه دی ؟

**ځواب** :- په اسلام کي دنحوست اوبدفالي کوم تصورنشته دایوازي توهم دی. په حدیث شریف کي دبدفالي دعقیدي تردیدشوی دی. ترټولولویه بدفالي دانسان بدعملي ،فسق اوفجوردی چي نن سباپه هرکورکي په خپلوډولونوکیږي. دابدعملي اونافرماني دالله ﷻ دقهراولعنت سبب ګرزي له هغه څخه ځان ساتل ضروري دی، دلته هم اسلام په نحوست قائل نه دی نوکوم کاریاورځ منحوسه ګڼل غلطه خبره ده. دګوتوتکان ایستل ناوړه دی اوکه ارمیږئ راشي په خوله دلاس ایښودلوحکم دی.

**مسئله** :- دماشومانوپه زیږیدلوخوشحالي یوفطري امردی خونجوني یائي میندي منحوس ګڼل اوله هغوئ سره حقارت آمیزه سلوک (بده رویه) کول ګناه ده.

**مسئله** :- په مختلفورنګونوجامي اغوستل جائزدی اوداخیال لرل چي له فلاني رنګ سره مصیبت راځي یوازي توهم دی. له رنګونوڅخه هیڅ نه کیږي. په اعمالوسره انسان دالله ﷻ په نزدمقبول یامردودوي

**مسئله** :- په محرم، سفره، شعبان، شوال، ذيقعده او ذى الحجه او نورو مياشتو کي واده نه کول په دي عقيده چې دا مياشتي منحوسي دي اسلام دي نظرته قائل نه دی. د محرم په مياشت کی حسين ﷺ شيهد شوی دی خوله دی څخه دا لازمه نه ده چې نکاح تړل پکښي ممنوع ده. په هره مياشت کي دا سي صالحان وفات شوي دی چې تر حسين ﷺ بزرګان دي له دی څخه دا نه لازميږي چې د کال په دوولسو مياشتو کي د ي په يوه کي هم نکاح نه کيږي. د شهادت مياشت د غم او نحوست مياشت ګڼل بالکل غلط کار دی.

## دسترګو تورول

**مسئله** :- داونۍ (هفتي) په ټولو ورځو کي د رنجو پوري کول جواز لري کومه ځانګړي ورځ ورته نشته.

**مسئله** :- د مازديګر او ماښام ترمنځ په خوړلو څښلو کي کوم کراهيت نشته. دا غلطه خبره ده چې د مازيګر او ماښام ترمنځ که خوراک څښاک ونه شي د روژي ثواب ليري. (آپ کي مسائل اوان کاحل ټوک ۱ مخ ۳۵۸)

**يادونه** : اپ کی مسائل اوران کاحل پښتو ترجمه به انشاءالله لږ وخت وروسته د(ستاسو مسائل او دهغوی حل) په نامه دهمدي اداري لخوا تاسوته وړاندی شي

## دبدفالي هيڅ حقيقت نشته

**مسئله** :- په خلکو کي مشهوره ده چې په ماښام کي چرګ اذان وکړي نو هغه ژر حلال کړئ ځکه دا ښه نه دی دد ي هم اصل نشته. دا هم مشهوره ده چې که چرګه اذان وکړي هغه ژر حلاله کړئ ځکه وباء ورڅخه پيدا کيږي دا غلطه خبره ده کوم شرعي حيثيت نه لري.

**مسئله** :- ډیرخلک دلکۍ لرونکي ستوري ښکاره کیدل منحوس ګڼل وايي: (کله چې دا ستوري څرګند (ښکاره) شي پر انسانانو مصيبت راځي اوپه هیوادکي جګړي پیل کیږي) دابالکل غلط دی یوازي نجومی خیال دی په اسلامی شریعت کي دابالکل خیالات بلل شوی دی.

**مسئله** :- ځیني خلک دسه شنبي ورځ منحوسه ګڼي داهم غلطه خبره ده دکومي ورځي منحوسه ګڼل جوازنه لري.

**مسئله** :- که مارغان په شګوکي ځان پټوي خلک دباران کیدلوګمان کوي. دطاؤس نعري دباران دکیدلونښه ګڼي داټول کوم اصل نه لري.

**مسئله** :- که سهاروختي ورته ښکنځاوشي یابل ضرر ورته ورسیږي ترماښامه همدابدالي بولي دابي اصله خبره ده.

**مسئله** :- که دشپي سپي وانګولي خلک وائي سهارپه دي کلي کی څوک مري داغلط خیال دی.

**مسئله** :- مشهوره داده چې څوک خریږي قبرورته یادیږی داغلطه ده دخریدلو سبب دانه دی.

**مسئله** :- که څوک په غیاب کي یادیږي اوهغه راشي وائي عمربه دي ډیروي په شریعت کی هم دد ي هم ثبوت نشته.

**دبدفالي په اړه مسئلي**

**مسئله** :- په بعض عوامو کي مشهوره ده چې که دسړي چپه اودمیرمني ښۍ سترګه غورزي کوم مصیبت راځي اوددي پر عکس بیاخوشحالي راځي. داخیال له اصله غلط دی په شریعت کي اصل نه لري.

**مسئله** :- ډیرعوام وائي دورغوي په تخيدلو مال راځي يا په پښو بخار (خارش) راتلل ياپيزارپه پيزارلويدل د سفركولو نښه ده. داټولي لغوخبري دي اوبدفالي دی.

**مسئله** :- ځيني ميرمني که دکاغی نعري واوري وائي ميلمه راځی داسي خيال کول ګناه ده.

**مسئله** :- ځيني خلک سهارمهال دکوم خاص ځای یادکوم حیوان مار، خنزيريانورونوم اخيستل منحوس ګڼي داهم يوه لغوخبره ده.

**مسئله** :- که دچاله لاسه پربل جارو ولګيږي ،معيوب ئي ګڼي اوورته وائي په کوهي کي مالګه واچوه که نه درباندي داغونه پيداکيږي دابي اصله خبره ده. داخيال هم کوي که ئي په بدن باندی جارو ولګيږي بدن وچيږي يائي مښه سپيريږي نوپه جارودي تو(ثف) کړي په دی کي کوم شرعي اصل نشته.

**مسئله** :- بعض عوام وائي که څوک په چمچی (قف ګير) ووهل شي هغه وړی کيږي دااصل نه لري.

**مسئله** :- په ځينو خلکو کی مروجه ده که څوک چيري ځي څوک پسي نعري کړی اوراوئي غواړي هغه ورسره جګړه کوي چې ولي دی راوبللم زماکارنه کيږي. داپه شريعت کی کوم اصل نه لري.

**مسئله** :- څوک چې په کوم کارپسي ځي اوپشيوئي ترخنګ تيره شي هغه په دی کارکي دناکامۍ خيال کوي داخيال هم غلط دی.
(اغلاط العوام مخ ۲۵)

**مسئله** :- ډيردکانداران دسهارله خواپه قرض مال نه ورکوي وائي که سهارمهال مال په پوروركړم توله ورځ په پورراځخه ځي. داپوازي

بدفالي ده. هو ! که په کوم مصلحت ورته پورورنه کړي هغه بله خبره ده.

**مسئله** :- مشهوره ده که په کوم کورکي تناوکش (غني) کورجوړکړي نودکورڅښتن پوروړی کیږي. په شریعت کي ددي اصل نشته. خو که کوردتناوکش(عنکبوت، غني) له ځالواونوروشیانوپاک کړي داغوره خبره ده پاکوالی اله ﷺ ته خوښ دی. (اغلاط العوام مخ۳۸)

**مسئله** :- که توره پیشوپه لارکی ورته تیره شي نوورانديي تلل ورته خطره نه لري داهم اصل نه لري. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۳۷۲)

**مسئله** :- ځیني عوام په کومه ځانګړي ورځ سفرکول ښه یابدګڼي دادکفارواونجومیانو عقیده ده په شریعت کي اصل نه لري.

**مسئله** :- ځیني میرمني وائي که نوي ناوي دخپل کوردروازه یاصندوق قفل (قلف) کړي نوکورئي بنديږي یعني ورانیږي. داخورابي اصله خبره ده. (اغلاط العوام مخ۴۷)

**مسئله** :- په شریعت کی ددي هم اصل نشته چې جارومه دروه ،یادشپي جارومه وهه، پرکټ ځادردسورپه لورمه اچوه ،ځپلی پر ځپلی بوټ پر بوټ، مه اړوه، دشپي نوکان مه پریکوه، دسه شنبي په ورځ نوکان یاویښتان مه پریکوه. داټولي خبري هسي وهم دی کوم شرعي اصل نه لري.

**مسئله** :- ترلمرلویدلووروسته سمدستي څراغ لګول ضروري نه دی ،داتوهم پرستي ده په شریعت کي اصل نه لري.

**مسئله** :- ماشوم غاښ چپه راوخيژي ځیني وائي چې انایاموړئي په جاروو هلی دی دا اصل نه لري.

**مسئله** :- دعوامو غلط فهمي ده چې دلمانځه ځای (مصلی) تولوي ترڅووربانـدي شـيطان عبـادت ونـه کـړي،داغلط دی. دمـصلي دتولورواج له دی امله ده چې ترلمانځه وروسته پرته له ضرورت څخه پروته نه وي اوخرابه نه شي. عوام داسي فکرکوي چې که دلمانځه له ځايه ليري نه شي شيطان وربانديي لمونځ کوي دامهمله (بي معنی) اولايعنی خبره ده. داکوم اصل نه لري.

**مسئله** :- پر ځمکه دمـالگی دتويولوکومـه خبره نشته. خوقصدآئي تويول بده خبره ده ځکه هغه هم دخدای ﷻ نعمت دی داغلطه خبره ده چې دمالگی تويول په آخيرت کي جزالري ياداچې پر ځمکه کـه تروي اوبـه تـوي شـي ځمکـی تـه تکليـف رسـيږي داهـم غلطـه خبـره ده. (آپ کي مسائل توک ۱ مخ ۱۱)

**مسئله** :- دکومي ميرمني چې لومړنی ماشوم ضائع شوی وي، بدفالي کول اوله ميرمني سره تبرياره ږدي ترڅوله بلاوو خوندي وي داهم يوه دشرک خبره ده. منعه کول ئي لازم دی. (بهشتي زيورتوک ۲ مخ ۸)

**له قاديانيانوسره داړيکودرلودلوحکم**

**پوښتنه** :- کـه څوک صحيح العقيده وي لمونځ کـوي اوروژه نيسي خودنيوي اړيکي له قاديانيانوسره ساتي. ددي حکم څه دی؟

**ځـواب** :- کـه څـوک دلمانځـه اوروژي پابنـدوي خـواړيکي ئـي لـه قادياني ډلي سره وي. که په زړه کي هغوئ ښـه ايسـوي دامرتددی، لـه هغه سره تعلق ساتل ښه نه دی. که لـه قاديانانوسره هم عقيـده نـه وي اونه هغه ښـه ايسـوي يـوازي تجارت يانوردنيائي معـاملات ورسره لـري نـوددي خبـري تفـصيل دادی. کـه هغـه وړانـدي مـسلمان وي بياالعياذبالله مرتدشي يائي پلارمرتدوي داچې دی دمال مالک نه

دی او عقیده ئې صحیح نه ده نو ور سره معامله صحیح نه ده.
(شامیه ټوک ۳ مخ ۳۱۱)
که هغه قادیاني مرتد یاد مرتد زوی نه وي بلکه له پلار او نیکه څخه پر باطله عقیده وي نو له داسي قادیاني سره په تجارت کولو د مال خپښتن کیږي خو له داسي خلکو سره د تجارت معامله جائز نه ده. ځکه داور سره یو ډول تعاون دی بل قباحت پکښي دا هم دی چې مسلمانان قادیانیان د مسلمانانو یوه ډله پیژني او قادیانیانو ته هم د خپلي لمني د پراخولو موقع پیدا کیږي او له قادیانیانو سره د معاملي قطع کول ضرور دی. که څه هم داسي تعلق بد دی داسړی د ملامتي وړ دی خو نور مسلمانان دي لازماً مسلمان گڼي. (احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۴۲)
**مسئله** :- د قادیاني حکم د مرتد دی، د هغه کور ته تلل غوره نه دی او نه ور سره تعلق ساتل ښه دی. (آپ کي مسائل ټوک ۱ مخ ۱۷)

**نذر څه شی دی ؟**

د ځینو مسلمانانو د ناپوهي حد نه وي. مثلاً ماشوم ئې ناروغ شي بیا نذر مني چې ای فلانی ولي الله که زما ماشوم آرام شو ستا په نوم به دومره نذر کوم. که د الله ﷻ په فضل او رحم سره هغه ماشوم جوړ شي نو هغه د ربار ته نذر وروړي په شرک اخته کیږي او که ئې هغه ماشوم ومري نو بیا گرمه په الله ﷻ وراړوي. که څوک ورته ووائي ستا ماشوم آرام نه شو تا ډیر کوشش وکړ، کفر دي وکړ، د شرک کار دي وکړ بدعت دي وکړ خو زوی دي روغ نه شو. په جواب کي وائي ورور ه الله ﷻ ته خوښ نه وو نو زما په تدبیرونو به څنگه آرامیده.
گوره څومره ناپوهي ده. پوهیږی چې پرته له الله ﷻ څخه ئې څوک روغولای نه شي په سلگونو ناپوهان په دی باور دي چې انبیاء کرام

،ملائکي اونورغیرمحسوس شیان زمونږضرورته نه پوره کولای شي
که ئي لمانځنه ونه کړوزمونږپه کارونوکي به فرق راشي ،تکلیف به
راته ورسیږي. که په ناڅاپي توګه ورته ګټه ورسیږي یادلمانځلوپه
کمیدلوکي ورته زیان ورسیږي دهغوئ په باطل خیال ورته قوي دلیل
په لاس ورځي داپه حقیقت کی دوهم دقوي کاردی. نورهیڅ نشته
لکه عوام چي په کوموځایونوکي ویریږي همداسي داګټه اوتاوان هم
ورته دوهمي قوي په وجه پیښیږي.
غرض داچي پرته له الله ﷻ څخه دبل چاپه نوم نذرمنل جائزنه دی که
نبی وي اوکه فرشته (ملائکه). *(محمدرفعت قاسمی رحمة الله علیه)*
**مسئله** :- له الله ﷻ پرته بل چاته که هغه نبی وي ،که ولي ،که ملائکه
یابل شی نذرمنل جوازنه لري. (مظاهرحق توک۳ مخ ۲۲۳)
**مسئله** :- دشرک یوډول دادی چي پرته له الله ﷻ څخه له بل چاڅخه
مرسته غواړي لکه مریض ته شفاء یامحتاج ته دشتمني اودهغه په
نوم نذرمني اوهیله ورته لري چي په نذربه مي مرادپوره شي یادهغه
په نوم وظیفه مقرره کړي. (حجة الله البالغة مخ ۲۲اواقسام شرک وفتوی رشیدیه توک۱ مخ ۳۷)

**دنذرشرطونه**

**مسئله** :- شرعاً نذرمنل جائزدی خوڅوشرطونه لري؛
۱- داچي نذردالله ﷻ په نوم ومنل شي. دالله له نوم څخه پرته نذرمنل
جائزنه دی ،ګناه ده.
۲- نذرمنل دعبادت په کارکي صحیح دی (نذرمنل دلمانځه ،روژي
،قرباني وغیره) کوم کارچي عبادت نه وي نذرپکښي صحیح نه دی.

۳- عبادت به هم فرض یاواجب وي لکه لمونځ، روژه، حج، قرباني یانور... داسي عبادت چې جنس ئي فرض یاواجب نه وي په هغه کي نذرمنل هم صحیح نه دی. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۱۹)

**مسئله** :- یوازي په زړه کی په کومه خبره راتلل نذرنشته بلکه په ژبه اداء کولو کیږي. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۲۵)

## ترکاروړاندي دنذراداء کول

**پوښتنه** :- که څوک داسي نذرومني چې که مي داکاروشي روژي به نیسم یابه نفل لمنځونه کوم نوداشخص به دکارپه پوره کیدلونذرپوره کوي که ترهغه وړاندي ؟

**ځواب** :- دالله ﷻ په نوم نذرمنل جائزدی اودکارترکیدلووروسته دنذرپوره کول لازم دی، وړاندی نشته خودکارترکیدلووړاند ي هم دنذراداء کول صحیح دی. که روژه وړاندي ونیسي اوکاروروسته وشي دکارترپوره کیدلووروسته بیاروژه نشته.

(آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۲۵- فتاوی رشیدیه مخ۵۴۷)

**مسئله** :- که څوک داسي نذرومني چې که مي وروررا غی لس روپي به خیرات کړم اوروپئ ئي ترراتلووړاند ي خیرات کړي چې ورورئي راشي بیابه ئي خیرات کوي. (بهشتي زیورتوک ۳ مخ ۵۰)

**مسئله** :- نذرمنل جائزدی خورسول الله ﷺ خوښ کړی نه دی نوځکه هم دنذرپه ځای صدقه ورکول غوره دی خوصدقه به له پاک مال څخه ورکوي. دحرام اوناپاک مال به څه صدقه وي اودالله ﷻ په دربارکی نه قبلیږي. (آپ کی مسائل توک۳ مخ۴۲۰)

**مسئله** :- له حرام مال څخه صدقه نه قبلیږي بلکه لاد وبال موجب ده. په حدیث شریف کې راځي: الله ﷻ پاک دی او پاک شیان قبلوي. له حرام اوناجائز مال څخه صدقه کول داسې مثال لري لکه څوک چې د مرداري (ګندګي) توته د پاچا حضور ته سوغات وړي. ښکاره ده چې دا پاچا ته خوښ نه دی بلکه لاناخوښه کیږي. (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۲)

**دنذر تعریف**

دنذر معنی ده چې په کوم شرط سره کوم عبادت پر ځان باندی لازم کړي. مثلاً ووائي که فلانی کار وشونوزه به دومره رکعته نفل لمونځ کوم، دومره روژې به نیسم، دبیت الله حج به کوم، فقیرانو ته به دومره روپۍ ورکوم او یا نور څه ...دي ته منت هم وائي. (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۱۹)

**په صدقه اونذرکي توپیر**

**پوښتنه** :- په صدقه او نذر (منت) کې څه توپیر (فرق) دی؟

**ځواب** :- نذر پر ځان دیوشي لازم کولو نوم دی. مثلاً څوک داومني چې که مې هغه کار وشوزه به دومره صدقه کوم. د کار په کیدلو ور باندې هغه صدقه واجب کیږي. او که ئې څوک پرته له لازمولو د الله ﷻ په لار کې صدقه او خیرات وکړي هغې ته صدقه ویل کیږي. ګواکې نذر هم صدقه ده خو واجبه صدقه. خو عام صدقات واجب نه دي. (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۳۱۸)

**په خیرات، صدقه اونذرکي فرق (توپیر)**

**مسئله** :- صدقه او خیرات سره یو دي، هغه مال چې د الله ﷻ د رضا لپاره دخیر په کوم کار کې صدقه کړای شي هغه صدقه او خیرات بولي او که دکوم کار په کولو کومه صدقه او عبادت ومنل شي هغه ته نذر ویل

کیږي. دنذرحکم دزکوة په څیردی هغه به یوازي بې وزلو ته ورکول کیږي شتمن به ئې نه خوري. دنیازمعنی هم نذردی. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۱۸)

## دصدقې تعریف اوډولونه

**مسئله** :- کوم مال چې دالله ﷻ په لارکې غریب اومسکین خلکوته ورکړل شيٰ یادخیرپه کارکښې ولګیږي هغه صدقه بلله کیږی. صدقه دري ډوله ده:

۱- فرض: لکه زکوة.

۲- واجب لکه: نذر، قرباني، صدقة الفطراونور.

۳- نفلي صدقات لکه: عام خیراوخیرات. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۱۸)

## دغلط نذرحکم

**مسئله** :- ځیني نذرونه په ګناه کې منل کیږی مثلاً: وائي که زمازوی ښه شونوزه به دسازاوآوازغونډه جوړوم. دابیهوده نذردی پوره کول ئې جائزنه دی. (فروغ الایمان مخ ۴۱)

**مسئله** :- ځیني خلک مکروه اوبدعت نذرمنيٰ مثلاً: وائي خپل زوی دحسین ﷛ فقیرجوړوي، دچاپه نوم ویښتان پریږدي، په غوږکې لښتئ اچوي یادچاپه مزارپوښ غوړوي، دشیخ په نوم څه شی نومري کوي. خدا ئې شپه کوي، دمشکل کشاروژه نیسي اونوري غلطې خبرې مشهوري دي دهغوئ چې په شریعت کی هیڅ اصل نشته بلکه په کلي یاجزیي ډول ئې ممانعت شوی دی. (اغلاط العوام مخ ۱۴۱)

**مسئله** :- نه پر مزاردسلامي کولونذرشته اونه دهغه پوره کول. که څوک په مزارباندي دعلامي کولونذرومني دامنل صحیح نه دی اونه ئې پوره کول سم دی. (آپ کی مسائل توک ۳۲۱۳)

**مسئله** :- دخاتون جنت (دجنت میرمن) کیسه درواغ ده نه په هغه نوم نذرصحیح ده اونه ئي پوره کول. (آپ کی مسائل توک ۴۲۱۳)
**مسئله** :- ځیني میرمني داسي نذرمني چې که مي دامراد پوره شو مسجدته ځم اوسلام به ورته کوم اویابه د مسجد طاقچه له څه ډکوم. که ئي مرادپوره شي خپل نذرپوره کوي. داغلط ده. د مسجد سلام دادی چې څه نفلونه وشي اوپه زړه کي شکروواني اوداکار په کورکي هم ممکن دی او طاقچئ ډکول دادی چې څومره توفيق ولري هغومره اړوخلکو ته څه ورکړي اوداکارپه کورکي هم کیدلای شي. (اغلاط العوام مخ ۱۴۰)

**دنذرمسئلي**

**مسئله** :- په کوم یوه کار داسي عبادت منل چې هغه یوځل فرض یاواجب شوی وي اوبیاهغه کارپوره شي. نودنذرپوره کول واجب دی. که منل شوی نذرپوره نه شي ستره گناه ده. خوکه کوم واهيات نذرومنل شوچې په شریعت کي اعتبارنه لري نودهغه پوره کول واجب نه دی.

**مسئله** :- که څوک ووائي: ای الله! که زماهغه کاروشي زه به پنځه ورځي روژي نیسم. کله چې هغه کاروشي پنځه ورځي به روژه نیسي اوکه سرته ونه رسيد نوبيادي روژه نه نیسي.

**مسئله** :- که یوازي داسي وویل شي چې پنځه ورځي روژي به نیسم بیافرق نه کوي چې هغه یوځای نیسي اوکه ئي دوه ،دوه یایوه یوه بیلي نیسي خوپنځه به پوره کوي.

که دنذر منلو په وخت کې داووائي يا په زړه کی دانيت وکړي چې پنځه ورځي به متصل روژي نيسم بيا که دنيولو پر وخت يوه ورځ هم پاتـه شي بيرته به ئي له سره پوره کوي.

**مسئله** :- که څوک يو رکعت لمونځ کول نذر ومني دوه رکعته لمونځ بـه پوره کوي. که دري ومني څلور به کوي او که پنځـه ومني، شپږ به پوره کوي همداسي دډيرو حکم دی. (چې جفت به پوره کوي)

**مسئله** :- کـه څوک داسي نذر ومني چې کـه مي فلاني کار وشو نو پر فلاني مزار به پوښ غوړوم، دا نذر نه کيږي او پوره کول ئي ضرور نه دی. يا ووائي دلوی پير صاحب ديوولسمی نذر ومني دا نذر صحيح نه دی او پوره کول ئي واجب نه دی.

**مسئله** :- دمولی مشکل کشا روژه نذر کول يا نور نذرونه ټول واهيات او خرافات دی او دمشکل کشا روژه منل شرک دی. غرض دا چې دحرام او ناجائز کار لپاره نذر منل صحيح نه دی او نه ئي پوره کول لازم دی.

**مسئله** :- پرته له الله ﷻ نورو ته نذر منل مثلا که څوک ووائي: ای لوی پيره! که زما فلانی کار وشو نو تاته به زه داسي وکړم مثلاً پر قبر بـه دی پوښ وغوړوم. داسي غوښتنه حرامه او شرک ده بلکه دهمدا نذر خوړل حرام دی. (بهشتي زيور ټوک ۳ مخ ۵۰)

**دنذر مصرف (ورکړي ځای، مصرف ځای) څه شی دی؟**

**پوښتنه** :- زما خور نذر منلی وو چې که الله ﷻ زما کار وکړي دالله ﷻ په نوم به وزه ذبح کوم. کار وشو اوس نذر پوره کوي آيا ددي وزي غوښه به خپلوان او کورنئ خوري کنه؟

**ځواب** :- دنذرشی یوازي بي وزله غريب خلک خوړلای شي، خپلوان دوستان اونوروشتمنو خلکوته جائزنه ده.

**مسئله** :- دنذرغوښه به دالله ﷻ په لارکي ویشله کیږي په خپله یاپه خپلوانو خوړل ئي جوازنه لري.

**مسئله** :- که پرته له وزي (څاروي) بل شی نذرومنل شي هغه به هم دالله ﷻ په لارکي ټول ویشل کیږی. لنډه داچې دنذرحکم دادی چې هغه به په بي وزلوغريبوویشل کیږي شتمن خلک به ئي نه خوري. نذرمنونکی اودهغه اهل اوعيال ته ئي هم خوړل جوازنه لري.
(آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۳۲)

**مسئله** :- ځيني خلک دنذرمصرف شتمن خلک هم بولي خوداغلطه ده .دفطر، قرباني او زکوة مصرف دنذرمصرف دی )

**مسئله** :- دنذرمال بي وزلوته ورکول واجب دی. که ئي دوستانو، خپلوانوته ورکړي هغوئ ته ئي خوړل حرام دی اونذرمنونکي نذرنه اداء کیږي. (اغلاط العوام مخ ۱۴۱)

**مسئله** :- که څوک داسي نذرومني چې که زمافلانی عزیزروغ شونوڅاروي به حلالوم اودالله ﷻ په نوم به ئي ويشم. که دانذرهرڅه وي. په خپله ئي خوړل حرام دی نه شتمن ته اونه ئي مورپلاراوزوی اولورته خوړل صحيح دی. (رشیدیه ټوک ۱ مخ ۵۴۸)

**مسئله** :- که دمړي لپاره نذرومنل شي داحرام دی دهغه خوړل چاته جوازنه لري. که نذردخدای ﷻ لپاره وي اوثواب ئي دمړي لپاره بخښل کیږي نوبي وزلوته ئي خوراک صحيح ده شتمن اووظيفه لرونکي علماء دي نه خوري. (فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۱۲۴)

## دصدقي مصرف

**پوښتنه** :- چاوزه صدقه کړه، غوښه ئي شاوخوا ګاونډ یانوته ورکړه اوپه کورکي ئي هم استعمال کړه آیاداغوښه په کورکي هم خوړلای شي؟

**ځواب** :- دوزي (یابل څاروی) په حلالولوصدقه نه کیږي، په بي وزلوباندي ئي ویشل صدقه ده څومره چې په بي زلوخلکوویشي هغومره صدقه ده، کومه چې کورخوري هغه صدقه نه ده. خوکه نذرمنل شوی وي نوبیاټول څاروي بي وزلوته ویشل واجب دی نه به ئي شتمنو ګاونډیانوته ورکوي اونه به ئي په کورکي استعمالوي.
(آپ کي مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۵)

## صدقه دبي وزلوپرځای سپیوته اچول

**پوښتنه** :- موږمابنام دالله ﷻ په نوم ډوډئ یاوریځي سپي ته اچووفقیرانوته ئي نه ورکوو ځکه نن سباهغوئ ټګان شوي دی آیاسپي ته زموږډوډئ اچول صحیح دی؟

**ځواب** :- کوم فرق چې دانسان اوسپي ترمنځ شته هغومره فرق ئي ورباندي په خیرات کولوکی هم شته داچې وائي نن فقیران ټګان دي، غلطه خبره ده. دالله ﷻ ډیربندګان محتاج دي خوتاسوته به ئي دارتیااظهارکړی نه وي، هغوئ ته صدقه ورکول مناسب دی. ددیني مدرسوطالبانوته ئي ورکول اونوردفی سبیل اللهلاري ډیري دي خوتاسودصدقي مصرف یوازي سپی ګڼلی دی؟ (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۸)

**دولی په نوم دوزي دحلاولو نذرمنل**

**مسئله** :- داسي نذرمنل چې (ای بزرګه ! که زمافلاني کاروشي نوستاپه نوم به وزه حلالوم یابه دي پرقبرڅادروغوړوم یانور. داسخته ګناه ده حرام اومشرکانه فعل دی. دانذرنه کیږي. ځکه په نذرکي داضروري ده چې څه شی نذرمنل کیږي هغه به په خپل ذات کي حرام نه وی که هغه دګناه فعل وي دهغه نذرپوره کول ضروري نه دی. داشیان له جهالت څخه راپیداشوي دي. له دی څخه توبه کول او استغفارویل لازم دی. (فتاوی رحیمیه مخ ۲۹ وشامی ج ۳ مخ ۳۹۹)

**دنذردروژي په بدل کي فدیه ورکول**

**پوښتنه** :- چانذرمنلی وو چې که مي ورورښه شودیرش ورځي به روژه نیسم خوهغه سوداګردی روژه نیول ورته ګرانه ده آیاهغه فدیه ورکولای شي ؟

**ځواب** :- چې ورورئي ښه شوپر ده باندي دیرش ورځي روژه نیول لازم دی،مسلسل ضرورنه دی په متفرق ډول ئي ونیسي ،کفاره (فدیه ) کافي نه ده. دځه چې نذرمنل کیږی هغه به پوره کوي.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۷۱)

**پرته له الله ﷻ دبل چالپاره نذرمنل**

**پوښتنه** :- دکوم ولي اوبزرګ زیارت ته تلل،حاجت غوښتل اونذرمنل چې که می داکاروشودومره پیسي به صدقه کوم،داجوازلري؟

**ځواب** :- دبزرګانوزیات کول صحیح دی خوپه سنت طریقه سره. (پر قبرلاس ایښودل ، ورته ټیټیدل ،هغه ښکلول ،ورته سجده کول،دادنصارااووعادت دی) اوله اولیاؤڅخه مدداومرسته غوښتل

حرامه ده. مرسته له الله ﷻ څخه غوښتله کیږي پرته له الله ﷻ که څه هم نبي یا ولي وي مرسته غوښتل شرک دی. دا نذر منل چې که مې الله ﷻ دا کار وکړي نو دومره پیسې به دالله ﷻ په نوم صدقه کړم دا صحیح دی که داسې ووائي چې که مې دا یا هغه کار وشو د فلاني ولي په نوم به دومره پیسې خیرات کړم دا نذر کول حرام دی. ځکه نذر عبادت دی. عبادت پرته له الله ﷻ څخه بل چا ته کول صحیح نه دی. که داسې ووائي چې که الله ﷻ زما دا کار وکړ دومره روپۍ به دالله په نوم صدقه کړم خو ثواب دي خدای ﷻ فلاني ولي ته ورسوي. په دې کې کومه خبره نشته. دا نذر د غیر الله لپاره نه دی یوازې ثواب ئې نورو ته بخښل کیږي. نذر الله ﷻ ته دی.

(فتاوی رشیدیه مخ ۵۵۰ - صحیح بخاری ټوک ۱ مخ ۱۳۱)

**مسئله**:- د ډیرو عوامو له لوري دا شخاصو په خاطر نذرونه کوي او د بزرګانو په مزارونو شمع، خوشبوي او روپۍ ږدي. مقصد یې دهمدې اشخاصو خوشحالول او د هغوی تقرب حاصلول دی. دا هر څه داماماتو په اتفاق حرام دی. د حراموالي په هکله ئې څو وجې دي:

اول: دا چې مخلوق ته نذر منل کیږي، حال دا چې نذر عبادت دی او الله ﷻ ته ځانګړی دی.

دوهم: دا چې چا ته نذر منل کیږي هغه مړشوی دی نو هغه به د څه شي څنګه مالک شي.

دریم: دا چې د مړه شوي په حق کې داعقیده کول چې هغه په عالم کې تصرف کوي داسې عقیده لرل کفر دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۲۱۵)

**پر مندراوقبرايښودل شوي شيان اخيستل**

**مسئله** :- کفارخپلو معبدونو(مندرونو) ته وزه ، چرګه ياخواړه وړي،هغه ئې مجاورو وړي ، دهغوی اخيستل صحيح دی. ځکه دهغوئ مالک يو کافردی اوکه کوم مسلمان مجاورهغه واخلي هغه نه مالک کيږي نوله هغه شخه ئي اخيستل صحيح نه دی داپه هغه صورت کي چې اخيستونکی خبروي که نه بيامباح دی. (رشيديه مخ ۴۹۰)

**مسئله** :- که څاروي دغيرالله په نوم پريږدي دهغې اخيستل اوغوښه ئي خوړل جوازنه لري. (فتاوی محموديه ټوک ۱۷ مخ ۲۹۸)

**مسئله** :- ځيني عوام وائي چې دسوګندا خيستلو په وخت کي که دچپې لاس ګوتي بندي شي نوسوګندنه کيږي. داغلط دی.

**دبتانوپه نوم دخيرات خوړل**

**پوښتنه** :- دغيرمسلمانانوپه جشنونوکي څه شيان پخيږي اودمختلفوبتانوپه نومونوئي ويشي آياداشيان خوړل صحيح دی؟

**ځواب** :- دبتانوپه نوم که څه شی نذرکيږي دمسلمان لپاره دهغه خوړل جوازنه لري. (آپ کی مسائل ټوک ۱ مخ ۷۱)

**پر مزارونوچې تيل توييږي هغه له څه کوي**

**مسئله** :- په قبرونوڅراغ لګول جائزنه دی نوهغه تيل چې ددرګاه دروښانولولپاره ورکوي پراصل مزاردي نه لګوي خوکه دمزارمتعلق خوني وي يادلاري دروښانه کولوارتياوه هلته ئي بلولای شي که کوم مسجددهغې هديري (درګاه) مربوط وي هلته هم په دي تيلوڅراغ لګولای شي. که دمسجددامام خونه ددرګاه مربوطه وي هلته دي هم لګوی اودمالک له اجازي پرته ئي بل ځای استعمالول ناجائزدی. که

دامعلومه شي چې داتیل دنذرپه توګه راوړل شوي دي نوهیڅ ځای ئي استعمال جائزنه دی. ځکه دغیرالله په نوم نذرحرام دی اودهمداسي شي استعمال هم حرام دی هغه چې داسي نذرشوی وي.
(امدادالمفتین توک۱ مخ ۱۸)

**مسئله**:- ځیني خلک دقبرلپاره نذرکوي دابالکل حرام دی ددي نذرخوړل هم حرام دی اونوروته ئي ورکول هم حرام دی داچې خوړل ئي صحیح نه دی ورکړه ئي هم سمه نه ده. (بهشتي زیورتوک ۲ مخ ۵۲)

**مسئله**:- پرقبرڅادر(پوښ) اچول هم ناجائزدی اوددي لپاره ئي نذرکول بله ګناه ده. دانذرصحیح هم نه دی نودنذرد پوره کولو لپاره پوښ اچول جائزنه دی. هو اکه دشکراني په توګه فقیرانوته صدقه شي بیاغوره خبره ده. (امدادالمفتین توک۱ مخ ۱۹)

**مسئله**:- ځیني خلک پرقبرونوباندي څادرونه اوپوښونه غوړوي اوهغوئ ته نذرمني خویادولرئ چې څادرورباندي غوړول منع دی اوکه په دي عقیده څوک داسي کوی داشرک دی. (بهشتي زیورتوک ۲ مخ۵۲)

**پرقبرباندی وزه نذرکول**

**پوښتنه**:- عوام پرقبرباندي څاروي نذرکوي یاوائي داوزه دفلانئي پیرده بیاورباندي بسم الله وائي اوحلالوي ئي. ددي څاروی غوښه خوړل حلاله ده که حرامه؟

**ځواب**:- داحیوان دغیرالله دتعظیم اوتقرب لپاره ذبح کیږي. که څه هم دذبح کولو په وخت دالله ﷻ نوم اخلي. ددي خوړل حلال نه دی.
(فتاوی دارالعلوم قدیم توک ۳ مخ ۱۲)

## دچاپه نوم ذبح کول

**پوښتنه** :- دچاپه نوم وزه یاچرګ ذبح کول څنګه دی. وائي دالله ﷻ له نوم څخه پرته دبل چاپه نوم حرام دی خوڅوک بیاوائي چې دحلالولوپه وخت کې که دبل چانوم واخیستل شي حرام دی اوکه دالله ﷻ نوم دحلالولوپه وخت کې واخیستل شي بیاحرام نه دی. که خلک وائي چې دادفلاني څاروي دی نودلته هم دالله ﷻ له نوم څخه پرته دبل چانوم اخیستل کیږي. نوجواب څه دی؟

**ځواب** :- که کوم څاروي دبل په نوم وي اوپه هغه نیت ذبح شي که بسم الله هم ووائی حرام دی. داسې څاروي دي نه ذبح کوي. داڅاروي حرام دي. خوداسې ویل دمالک په صفت صحیح چې دفلاني څاروي خودچادتعظیم اوقربت لپاره حرام دی. که په داسې نیت وي چې ددې ثواب لپاره دالله ﷻ په خاطرفلاني ته بخښلی دی څه مشکل نشته دبل چادتعظیم په ډول ذبح حرامه ده نه داچې څوک مالک وبلل شي په دی دواړوکې فرق دی. (فتاوی محمودیه ټوک۱ مخ۱۸۸)

## په صدقه کې درنګ قید

**پوښتنه** :- آیاپه صدقه کې توره چرګه یابل رنګ اونسل ضروري دی؟

**ځواب** :- څه شی چې دالله ﷻ درضالپاره فی سبیل الله ورکول کیږی صدقه بلله کیږی. نفلی صدقه دتوان په اندازه کیدلای شي. دصدقې له امله بلاوې لیرې کیږی. په صدقه کې وزه یاچرګه شرط نه دی اونه دکوم رنګ اونسل قید شته. څوک چې داقیدونه لګوی هغوئ اکثربددینه خلک دي. (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۳)

**مسئله** :- دالله ﷻ په لاره کي چې کوم مال خرڅ شي هغه صدقه ده. که هغه اړوخلکو ته روپۍ ورکوي، که خواړه ورکول وي اوکه جامه ورکول وي اوکه بل شی وي. خودتوري وزي اوچرګي قيدنشته. اونه دصدقي لپاره دوزي ياچرګي حلالول شرط دی. که دهغوئ نقد قيمت چاته ورکړل شي هم هغه ثواب دی. (آپ کی مسائل تو ک ۳ مخ ۴۳۰)

**مسئله** :- که دکوم کاردکولولپاره دشيريني نذرومنل شي دشيريني ويشل ضروري نه دی بلکه هغومره روپۍ دي کوم اړسړي ته ورکړي. (آپ کی مسائل تو ک ۳ مخ ۴۲۴)

## دنذردچرګ حکم

**پوښتنه** :- کوم ځاروي ترنوروځاروو وګرزوي يادانسان ترسرجارکړي دهغه غوښه خوړل څنګه دی؟

**ځواب** :- دامشرکانه طريقه ده چې ورته دجارولونذروائي دادغيرالله لپاره نذردی، حکم ئي دمرداردی اوخوړل ئي ناجائزدی. (فتاوی محمودیه توک ۱۷ مخ ۳۹۴)

## دغيرالله په نوم دځاروي دپريښودلوحکم

**پوښتنه** :- دغيرالله په نوم غواياګاومښه خوشي پريښودله کيږي. که دهغي غوښه خوړل صحيح نه دی نودهغوئ اولادڅنګه دی؟

**ځواب** :- دغيرالله په نوم کوم ځاروي پريښودل حرام دی دهغه خوړل هيڅکله جائزنه دی خوکه ددغسي ځاروي اولادوشي نواولادئي مردارنه دی. (فتاوی محمودیه توک ۱۷ مخ ۳۹۱)

## په ځانګړي ډول توره وزه ذبح کول

**پوښتنه** :- يوه شخص درمضان المبارک په ۲۷ نيټه يوه توره وزه حلالوي اودکورنۍ تول وګړي ئي رابولي، لاسونه ئي رنګ کړل

اوورباندې وئې وهل بیا امام هغه ذبح کړه. دهغې سراو پښې ئې په یوه کډې کې پټې کړې او ښه ئې پخه کړه وئې خوړه او هغه وزه ئې د کالې (توررنګ - توردیب) په نوم ذبح کړه دهغې دغوښې خوړل څنګه دی؟

**ځواب** :- دافعل سخته ګناه ده، شرک ته نژدې دی او غوښه خوړل ئې حرامه ده هغه مرداره ده. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۰ مخ ۸۵)

## دسیندپه نوم ذبح کول

**مسئله** :- دخدای ﷻ له حکم څخه پرته هیڅ شی نه ګټه رسولای شي اونه زیان. دسیند څمکه هم ګټه اونقص دخدای ﷻ په حکم کې دی. دسیندپه نوم ذبح کول چې ګواکې هغه به خوشاله شي اوزیان به څمکی ته نه رسوي یادخضر ؑ لپاره څاروی ذبح کول اوداعقیده لرل چې هغه به خوشا له شي اوزیان به څمکي ته نه رسوي، ناجائز دی داعقیده اسلامی عقیده نه ده. له داسې عمل څخه ځان ساتل ضروري دی توبه ورڅخه واجب دی. له الله ﷻ څخه داسې دعااوغوښتنه صحیح ده چې ددې سیند اونوروزیانونو څخه موو ساتې اوله زیان رسیدلو څخه دالله ﷻ په نوم حسب الطاقت خیرات کول هم ګټوراودثواب موجب دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۵ مخ ۲۸۹)

## دغیرالله په نوم دنذرحکم

**پوښتنه** :- دبزرګانو پر مزارونو چې نذر کیږي او دادهغوئ دخوشحالي لپاره وي، هلته چرګان یاڅاروي ذبح کوي آیادهغوئ غوښه خوړل جائزدی او کنه؟

**ځواب** :- کوم عوام چې دبزرګانو په نوم نذراونیازمني سخت ګناهګاردی دی خوړل ئې ناجائزدی. کوم چرګ یاڅاروي چې

دبزرگانو په نوم حلالیږي هغه مرداردي که ئي دبزرگانو په نوم ومني اوذبح کولو په وخت کي وزباندي بسم الله، الله اکبروواني بیاهم حرام دی. (که دالله ﷻ لپاره ذبح کړي اوثواب ئي چاته وبخښي بیاجائزدی)

**مسئله :-** هغه څاروي هم حرام دی چې دهغه په هکله دااعلان وشي یامشهوره چې هغه دغیراله لپاره ده. غیرالله که بت وي، که خبیثه روح وي یاپیري یادپیغمبراوپیرپه نوم ژوندی څاروي ونوموي داټول شکلونه ئي حرام دی. په حدیث شریف کي راځي: (څوک چې دغیرالله دتقرب لپاره څاروي ذبح کوي هغه ملعون دی) که دحلالولو په وخت کي دغیرالله نوم اخلي اوکه ئي نه اخلي خوداچې غیرالله ته منسوب دی همدابدي ورته پیداده چې دمردارتربدي زیاته ده. په مردارکی یوازي حالیدل دغیرالله په نوم کیږي خودلته ددي حیوان روح اوځان غیرالله ته مقررشوی دی هغه چې عین شرک دی. داچې دابدي ورته سرایت کړی دی نودالله ﷻ دنوم په اخیستلونه حلالیږي. لکه چې سپی اوخنزیردالله ﷻ دنوم په یادولونه حلالیږي همداسي داهم نه حلالیږي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۲۶۲)

**مسئله :-** دغیرالله په نوم چې کوم نذرورکول کیږی که مقصدورڅخه دهغه بزرگ روح ته دثواب ایصال وي یعني دالله ﷻ لپاره چې کومه صدقه کیږي دهغي ثواب بخښل ورته مقصدوي داصورت ئي جائزدی. اوکه یوازي دهغه بزرگ رضاحاصلول غواړي اودهغه په نوم نذرمني ګواکي هغه خوشحاله شي اوکارئي وکړي داناجائزاوشرک دی. (آپ کی مسائل ټوک ۳ مخ ۴۲۰)

## څاروي دمړه یاژوندي شخص په نوم کول

**پوښتنه**:- که یو څاروي دکوم مړه یاژوندي شخص په نوم کړي اوبیا ذبح شي آیاخوړل ئي جائزدی؟ یاووائي چې که مي داکاروشي زه به دفلاني بزرګ په نوم داڅاروي ذبح کوم؟

**ځواب**:- که څاروي دکوم بزرګ په نوم داسي کوی چې داصدقه کوم چې ثواب ئي ورته ورسیږي خوسمه ده اوغوښه خوړل ئي جوازلري اوکه مقصد دهغه په نوم نذرکول وو داشرک ده اوخوړل ئي حرام دی خوکه نذرکوونکي له خپل کارڅخه توبه وکړي اوله داسي نذرڅخه راوګرزي بیائي خوړل جائزدی. (آپ کی مسائل تو ک ۳ مخ ۴۲۱)

## دنذرپوره کول واجب دی

**پوښتنه**:- زمامورناروغه وه ماندرِمنلی ووچې که مي دمورعملیات بریالي وشي سل رکعته نفل لمونځ به کوم، دهغي ترروغیدلووروسته مي څلویښت رکعته نفل وکړل نورپاته دي نوڅه وکړم؟

**ځواب**:- که دي دمورعملیات سم شوي وي نوسل رکعته نفل درباندي واجب دی اوخپل نذرپوره کول واجب دی نوداپاته رکعتونه هم وکړه. (آپ کی مسائل تو ک ۳ مخ ۳۲۷)

**مسئله**:- که دنذرکوونکي داهیرشول چې څومره رکعته نفل مي منلي ووپر حافظه دي زورراولي په څومره چې ئي ګمان اواټکل غالب شوهغومره دي وکړي اودانفل کول ورباندي واجب کیږي دهغوئ په ځای صدقه ورکول دانه پوره کوي. (آپ کی مسائل تو ک ۳ مخ ۳۲۷)

**مسئله**:- دکوم کارپه هکله چې نذرومنل شي که هغه پوره نه شي نونذرنه لازمیږي. که داسي وویل شي چې که داکاروشودومره روژي

به نیسم یادومره صدقه به ورکوم که هغه کاروشو هغه معلومه اندازه نذربه پوره کوي اوکه ئې وویل یوڅوروژي به نیسم یایوڅه صدقه به کوم بیادي اوس اندازه وټاکي. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۲۴)

**که دصدقي امانت ورک شول**

**پوښتنه**:- ماته مي خوردوزي داخیستلو لپاره څلورسوه روپۍ راکړي وي، هغه چاراڅخه غلاکړي په دی صورت کی صدقه وشوه اوکنه؟

**ځواب**:- ستاپر ذمه ددغوروپواداء کول لازم نه دی. که ستادخورنفلي صدقه وه په هغي هم څه شی لازم نه دی اوکه ئي نذرمنلی ووبیائي دنذرپوره کول لازم دی. (آپ کی مسائل توک ۳ مخ ۴۲۴)

**رسمونه څه شی دي؟**

**مسئله**:- کوم رسمونه چې دي پخوارا پیداشوي دی ډیرپکښي داسي دی چې هوښیار خلک لاپکښي لتاړدي. ددي رسمونواورواجونوپه هکله دخلکوانکل دادی چې ګناه ولي ده، نراوښځي سره راغونډیږي څه شی خوري چښي کوم رقص پکښي نشته رباب اوباجه پکښي نشته نوولي دشریعت خلاف ده چې ممانعت ئي وشي. همداغلط انکل دی چې په عقل ئي پردي غوړیدلي دی اوپه دي رسمونوکي چې کومي باریکي خرابي دی هغه درک کولای نه شي. داداسي دي لکه وړوکی ماشوم چې دشیریني رنګ اوخوندګوري هغه ښه شی ګڼي اوضررئي درک کولای نه شي موراوپلارچې ئي په زیان پوهیږي اوهغوئ تري منع کوي ماشومان همداخواخوږي خپل دښمنان ګڼي.
په رواجونوکي چې کومي بدي دي هغه دومره باریکي اوپټي هم نه دی چې درک نه شي بلکه هرڅوک له رواجونوڅخه خواتوري اوتنګ

دي، ټول داوائي چې که همدارواجونه وي خورانبه ده خودرسم له امله هرڅوک پکښې ګډوي اوداهم پکښې نه وي چې ټول ئي يوځای پريږدي. پر هرمسلمان که نارينه دي که ښځينه لازم دی چې داعبث رسمونه پريږدي، همت وکړي چې دارواجونه ختم کړي اوداسي ژوند پيل کړي لکه درسول الله ﷺ په زمانه کي چې ساده روان وو. که کوم سړی یاميرمن په دي هکله زیاروباسي خوراثواب هم ورته لري.
په حديث شريف کی راځي: (دسنت طريقوترپاته کيدلووروسته که ئي څوک ژوندی کړي دسلوشهيدانوثواب ورتهورکول کيږي ) داچې دارواجونه ټول په تاسوپوري اړه لري که لږکوشش هم وشي ژربه اثروکړي انشاء الله: (بهشتي ټوک ۲مخ۷)

**په واده کي سامان ورکول**

**پوښتنه**:- دخورځي دواده په مهال يي ماماورته په خپل همت سامان ورکړداجوازلري؟

**ځواب**:- خورځي یاتروړته په صله رحمي کي څه شی ورکول مباح بلکه غوره کاردی خولکه په هندوستان کي چې سامان ورکول رواج دی هغه محض يوهندي رسم دی، زياده اصل مقصدچې هغه صله رحمي ده هغه یوازي ترذهن تصورپوري پاته وي. دايوازي نوم اوزياده دخلکوله طعنی اودپوزي پري کيدلوله ويري کيږی. که ورسره څه نه وي په قرض ئي ورته پيداکوي اوداصحيح نه دی. که داشيان نه وي اويوازي دصله رحمي په نيت ئي هم ورکوي بيائي هم عام رواج ګڼي. نوپه دي ډول دي نه ورکوی. ترواده ښه وړاندي یابل

وخت چې ضرورت احساس شي ورته وردي کړي هغه هم هغه څه چې ورته ضروروي او څوک دي وربانديي نه خبروي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۲۴۳)

**مسئله** :- په عواموکې دامشهوره ده چې ددواړواخترونوترمنځ دي نکاح نه کیږي دابالکل غلطه خبره ده ځکه دعائشې رضی الله تعالی عنهانکاح ددواړواخترونو ترمنځ شوي ده. (اغلاط العوام مخ ۱۲۲)

**دنکاح په وخت کې کلمه ویل**

**مسئله** :- دناوي له کلمی ویلو پرته هم نکاح صحیح کیږي ځکه هغه پخوالامسلمانه وي. دنکاح په وخت کې دمسلمان لپاره کلمه ویل شرعاً لازمه نه ده که ئي ووائي هم سمه ده. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۱۳۶)

**مسئله** :- دواده کولولپاره ځینی خلک تاریخ ټاکي چې دمیاشتي مثلاً په ۳ - ۲۳ - ۱۳ نیټو به واده نه کیږي نورکه هرتاریخ وي سمه ده. دارواج شرعاً بې اصله دی پابندي ئي نه ده لازمه. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۲ مخ ۱۲۱)

**دګوټه کښینولواونوکريخولګولودرواج حکم**

**مسئله** :- دګوټه کښینورسم کوم شرعي اصل نه لري. ممکن چاچې دارواج پیل کړی دی مقصدئي داوي چې نجلۍ ګوټه کښیني ،لږ خوري لږي خبري وکړي یادنه خبروعادت خپل کړي ترڅو خسرګنۍ ته واده شي هلته به ورته پریشاني نه وي. په هرحال داضروري ګڼل اوله شرعي محارموڅخه ګوټه کښینول عبث خبره ده که غوروشي دارواج دنجلۍ په حق کې دیوازیتوب ترقیداوژوندۍ په ګورکولوکم نه دی. تعجب داده چې دزنااوعلم په وخت کې دتوري دوري رواج لاله نجونوسره پاته دی خوهیڅوک ئي دقباحت اوبدي احساس نه کوي.

**مسئله** :- دنوکريځوړواج چې له دومره لوازماتوسره اداء کيږي داهم دناپوهي ددوروياد ګاري ده. چې په څرګنده خورامعصوم ښکاري خوپه حقيقت کی ډېرومجرماتوټولګه ده ددي بندول ضروري دی. ماشومانوته دنوکريځواستعمال بدنه دی خوغونډه جوړول اوخلک رابلل ځوان هلکان اونجوني يوځای کيدل بې پرواسره ګډيدل اودنوروبي حياوو موجب دی. (آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ۱۳۲)

سهرا (دګلانوکېډۍ -آميل) بندول

**مسئله** :- په ودونويانوروڅرانسموکی سهراتړي دادهندوانورسم دی چې بي علمه يابي عمله مسلمانوکورنيوهم له هغوئ سره دخلطيت له کبله خپل کړی دی پريښودل ئې لازم دی. دهند سترو علماوو: مفتی عزيزالرحمن، مفتی کفايت الله، مولاناخليل احمداو مولاناتهانوی رحمة الله عليهم ددي حديث شريف (من تشبه بقوم فهو منهم) له وجې هغه منع کړی دی. (فتاوی محموديه ټوک۱ مخ۱۵۵)

**سندوراونوکريځي وهل**

**مسئله** :- ميرمنوته په ويښتانوسندوروهل هم داحکم لري ،هغه داختلاط له وجې دهندوانورسم ورته راغلی دی. دميرمنولپاره دنوکريځواستعمال سم دی بلکه ورته ځانګړی دی په لاس اوويښتانودي نوکريځي وهي. سړی دي ورسره مشابهت نه کوي. په حديث شريف کي ورباندي لعنت ويل شوی دی. (لعن الله المتشبهين من الرجال بالنساء) (مشکوة شريف فتاوی محموديه ټوک۱ مخ۱۵۵)

**مسئله** :- مسلماني میرمني چې په ویښتانو سندوروهي اوپر تندي بندتړي دادغیرمسلم میرمنو شعاردی له هغه څخه ځان ساتل ضروري دی. هغه دي هیڅکله نه خوښوي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۷ مخ ۲۹۴)

**مسئله** :- دسال ګرې رسم هم دغیرمسلم قومونو طریقه ده مسلمانان دي داطریقه (دماشومانو دپیدایښت په نیټه کیک غوڅول دکلونو په شمیرشمع لګول) غوره نه کړي که نه دایمان خطره ده.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۷مخ ۷۷، محمودیه ټوک ۱۷ مخ ۳۶۰ آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۲۷)

**مسئله** :- په څلویښتمه ورځ ماشوم مسجد ته وړل اود مسجدي مراسم په ځای کول هم کوم شرعي اصل نه لري. دادپرېښودلو وړدی.
(فتاوی محمودیه ټوک ۱۰ مخ ۸۲)

**مسئله** :- یوڅوک خپله سالګره نه لمانځي خودنورودوستانو په سالګره کی ګډون کوي، داګډون دي هم نه کوي ځکه په عبث کارونوکی ګډون هم عبث دی.

**مسئله** :- تحفه ورکول ښه خبره ده خودسالګرې په نوم ئې ورکړه بدعت ده. (آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۲۷)

**مسئله** : سالګره لمانځل اوډول خرافات کول دشریعت خلاف خبره ده.
(فتاوی رشیدیه)

**مسئله** :- دنوي عیسائي کال په راتلو خوشحالي کول دعیسایانو رسم دی مسلمانان ئې دناپوهي له وجې لمانځي، داجائزنه ده.
(آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۲۹)

## دروژي دماتولودرواج حکم

**پوښتنه** :- زمونږ دلته دارواج دي چې ماشوم لـومړئ روژه ونيسي خواړه پخوي اودهغي روژي دماتولووخت ته خپلوان راغواړي. آيا له حديث شريف څخه ثابته ده؟

**ځواب** :- ددي رواج په شريعت کي کوم ثبوت نشته. داثواب ګڼل په دين کي زياتوالى راوستل دى اوبدعت دى،ناجائزدى. که ئي ثواب هم نه بولي بيائي هم ترک لازم دى. ددي رسم قباحت هوبنيارانوته څرګند دى. (احسن الفتاوى ټوک ۱ مخ ۳۷۱)

**مسئله** :- نوي زيږيدلي ماشوم ته داسي سوغات ورکول صحيح دى چې دمشرانود شفقت غوښتنه وي خودلازم اوواجب ګڼل اوهغه دماشوم دنيک مرغي دليل بلل ناپوهي ده. (آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۴۱)

## دبسم الله ويلوتقريب کول

**پوښتنه** :- دلته دماشومانودبسم الله ويلورواج دى. داجائزدى. په داسي موقع دعوت منل کيدلاى شي؟

**ځواب** :- که کوم صالح بري ورته بسم الله وائي،بي وزلواودوستانوته څه ورکول چې د ماشوم په تعليم کي دبرکت سبب شي خوښه ده له تکلفات،رياء اوفخرڅخه پکښي ځان ساتل لازم دى.

(فتاى محموديه ټوک ۱۷ مخ ۴۲۲)

**مسئله** :- نن سباپه څلورکلني کی دبسم الله ويلورواج هم ډيردى خوپه آيت اوحديث شريف کی ئي کوم اصل نشته. (اغلاط العوام مخ ۸۱)

**مسئله** :- په رواجونوکي يوهم دبسم الله ويلورواج دى چې په ډيراهتمام اوپابندي سره کيږي. مثلاً چې ماشوم څلورکاله

ثلورمیاشتي اوثلوروړځي عمرولري په همدي تاريخ ئي داتقريب کوي. دابي اصله اوعبث ده. خودوئ ئي دومره پابندی کوي چې هيڅ خلاف ئي کولای نه شي. ناپوهان خوئي لادشريعت خبره ګڼي له همدي امله ورځخه دعقيدي خرابي پيښيږي اودشريعت په احکاموکي له ځانه زياتوالی کوی. اصل دادی چې ماشوم دخبروشی ورته طيبه کلمه وښياست يوصالح شخص به ورته بسم الله وښيي اوددي نعمت په بدل کي دي دالله ﷻ لپاره خيراوخيرات وکړي.

**مسئله :-** ډيرليدل کيږي کله چې ماشوما ژبه کوي کوروالاورته بابا،مور،وروړک اونورنومونه ښيي خوکه دهغوئ په ځای الله الله ﷻ ورته ووائي څومره به ښه وي. (بهشتي زيورتوک ۷ مخ۱۲)

**اختردي مبارک شه ويل**

**پوښتنه :-** نن سباداخترپه ورځ په تيره دااخترلمانځه وروسته اختردي مبارک شه ويل کيږي آياداصل لري؟

**ځواب :-** په شريعت کی ددي کوم ثبوت نشته. عواودالازمي بللي دي له همدي امله مکروه ده اوکه په دي ثواب هم وبولي بياخوګناه ده ځکه داپه شريعت کي زياتوالي دی.

۱- فقهاوو رحمة الله عليهم دااختردورځي سنت اومستحب بيان کړی دی که (اختردي مبارک شه) ويل مستحب وای. ويلي به ئي وو.

۲- که داسي ويل مستحب وای علماوو اوصالحانوبه داتعامل ساتلی وای خوداسي نه ده اودعواموررواج دی.

مطلق دبرکت دعامستحب ده اوپه خاص الفاظوالتزام کول بدعت دی که دااختردعا مقصودوګرزوي اوځه ووائي. مثلاً الله ﷻ دي په

اخترکي برکت واچوي، الله ﷻ دې مبارک کړي يانورپه دي کي کومه بدي نشته. خو هروخت اوهروخت داسي ويل (اختردې مبارک شه) دادامعنی چې دغه الفاظ وې مقصوددې نودا په دين کی زياتوالی دی، بدعت اومکروه ده. (احسن الفتاوی ټوک۱ مخ ۳۸۴)
مقصد دادې اختردي مبارک شه الفاظ دي سنت اومستحب نه ګڼي نه دی ضروري بولي که متفرق الفاظ استعمال کړي بيابده خبره نه ده.

**اخترمبارکی غوښتل**

**مسئله** :- داخترپه ورځ عيدي (داخترمبارکي ) غوښتل جائزنه دی. خودخوشحالي لپاره ماشومانو، ترلاس لاندې کسانو يانوروته سوغات ورکول ښه ده خوهغه دي نه سنت ګڼي اونه هم ضرور.
(آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۳۲)

**دجامواغوستلورواج**

**مسئله** :- ځيني خلک ليدل کيږي چې دلنګوټي دتړلولپاره کښيني ځيني ناست وي ولاړشي. دا اصل نه لري.

**مسئله** :- ځيني عوام دافکرکوی چې که نوي جوړه ياجامه واغوستل شي دهغوی حساب کيږي خوکه درجب له مياشتي بيادرمضان تروروستنۍ جمعي واغوستل شي حساب نه لري داټول غلط دي.
(اغلاط العوام مخ ۱۴۹)

**دځای ناستي رسم**

**مسئله** :- يورسم دادی چې شيخ (پير) ومري (داناپوهي ده چې) مريدان ئي راغونډيږی دهغه زوی ياخادم ئي ځای ناستی تاکي اودسند لپاره ئي دپګړۍ تړلورسم کوي. که هغه اهل وي اوکه نااهل وي. دفکرخبره ده هغه خلک چې له هغي لاري سره ناآشنادي نواجازه

ئي ترکومه داعتبار وړده. په يادولرئ چې داخلک دځای ناستي سره په دي غونډه کې بيعت کوي دهغوئ وبال له دی (نااهل) ځای ناستي سره برابردی همدوئ دګمراهي اوضلالت بانيان دي. په حديث شريف کې راځي چې دقيامت له علامو څخه داده چې خلک په ناپوهانو خپل لاربنوونکي غوره کوي. (اصلاح الرسوم مخ ۱۴۰)

**دحجاج کرامو بلنه اودهديي ورکړه**

**مسئله** :- داسي رواج دی چې درحمت په ځای زحمت اودنعمت په ځای بدمرغي جوړوي. دارواجونه بددي چې له رحمت څخه زحمت جوړوي اوددارسمونه له اصراف څخه پرته نورڅه نه دی. ددي تولورسمونوختمول ضروردی. ختمولوئي خلکوته خوراسهولت پيداکيږي. که درواج فکرنه وي بياهم په ناسته ولاړه کې اخلاص وي دارسمونه چې ديني حيثيت نه لري خلک له راشه درشه اوددعاله غوښتلوڅخه بې برخې کوي. په دی رسمونوکي ډيرزحمت هم وی اودشريعت خلاف هم دي. هغه خلک چې حج ته ځي هغوئ دي خپلوانواونوروخلکوته ووائي چې درواجونوپابندي دي نه کوي اوددوئ دي کوم فکرنه کوي کوم خلک چې دارسمونه ختم کړي انشاألله ورته اجراوثواب به ورکړل شي. که بيانورخلک هم دغسي وکړي انشاأ لله ثواب به وموومي. (فتاوی رحيميه توک ۱۰مخ ۱۸۳دمشکوة شريف مخ ۲۳په حواله)

دميت (مړي ) کورته داخترپه ورځ خواړه استول

**مسئله** :- داخترپه ورځ دمړي کورته خواړه استول يو غلط دستوردی. دپريښودلووړدی. دمړي کورته لومړی ورځ خواړه ورکول مسنون

عمل دی تردي وروسته په تيره د اختر په ورځ ئي ورکړه صحيح نه دی.
دا اسلامی طريقه نه ده پردی، طريقه ده. (فتاوی رحيميه توک ٦مخ ٢٧٣)

**دمتبرکو شيانو زيارت کول**

**مسئله** :- چيري د چپني ياويښته مبارک نسبت پيغمبر ﷺ يانورو صالحانو ته شوی وي. د هغوئ د زيارت لپاره خلک راغونديږی يائي له کورونو راغواړي او زيارت ئي کوي او په زيارت کوونکو کي ميرمني هم وي. لومړی خو هر ځای د دي متبرکاتو سند نشته. که سند هم وي راغونديدل د يري بدئ لري. مثلاً شراوشور، بي پردي والی، کله خولا د زيارت کوونکو آواز ويل او نور. هو ! که يوازي د متبرکو شيانو زيارت وشي او د زيارت په وخت کي هم خلاف الشرع عمل ونه شي بيا صحيح ده.

**يادونه** : کوم شی چې شريعت ناجائز بللی هغه جائز بلل گناه ده. څه شی چې ئي جائز بللی خو ضروري ئي بللی نه دی هغه ضرر بلل گناه ده.
ياپابندي کول يا دنوم لپاره هغه کول داهم گناه ده.
همداسي که په شريعت کی څه شي ته ثواب ويل شوی نه وی هغه ثواب بلل گناه ده. که ئي څه شی ثواب بللی وو او ضروري ئي نه وو بللی ، هغه ضروري بلل هم گناه ده. که ئي څوک ضروري نه بولي خو دعوامو له طعنی اوويري ئي پريښنو دل بد بولي داهم گناه ده.
همداسي څه شي منحوس (سپيره) بلل گناه ده. پرته له شريعت څخه خبره جوړول او هغه يقيني بلل گناه ده. پرته له خدای ﷻ څخه له بل چاغوښتنه کول. څوک دگټي اوزيان رسولو مالک بلل داټولي خبري گناه دي الله ﷻ دي ټول ځيني وساتي. آمين.

که داتول وبښودل شي اوخيال ئي وساتل شي، دټولو رسمونه حال معلوم شي څوک به نه خطاء کيږي. (بهشتي زيور ټوک۲ مخ۴۲)

## دعقيقې درسم بيان

### عقيقه به څنګه کيږي ؟

**مسئله** :- دچاکه ماشوم (هلک ياانجلۍ) وزيږيدی غوره داده چې اوومه ورځ ئي نوم کښيښودل شي اوعقيقه ئي وشي. په عقيقه کولوسره ماشوم له ټولو بلاګانوخوندي اوله آفتونوڅخه ساتل کيږي.

**مسئله** :- دعقيقې طريقه داده چې که هلک وي دوه څاروی(پسه ياوزه) اوکه انجلۍ وي يوڅاروي اوياد قرباني دوۍ برخې دماشوم اويوه برخه دماشومې لپاره اودسردخريل شويوويښتانوله وزن سره برابرسره زروويشي (يائي روپۍ) اوکه ئي زړه غواړي په سردي زعفران ووهي.

**مسئله** :- که عقيقه په اوومه ورځ ونه شي وروسته چې ئي هره ورځ کوي دااوومې ورځې خيال دی وساتي داغوره ده اوطريقه ئي داده چې په کومه ورځ ماشوم زيږيدلی، عقيقه دې يوه ورځ وړاندې وشي مثلا که دجمعې په ورځ زيږيدلی عقيقه دې په پنجشنبه وشي اوکه په پنجشنبه پيداشوی وي نوعقيقه دې په چهارشنبه وشي. په دی طريقه اوومه ورځ برابريږي.

**مسئله** :- ځينې ځايونه دادستور(رواج) دی، کله چې ئي دماشوم په سرچاړه کښيښودله اوويښتان اخيستل ئي پيل کړي سمدستی وزه يابل څاروی ذبح کوی ،داهسې يومهمل رسم دی، په شريعت کې

جائزنه دی ، که ترو یبنتانو اخیستلو وروسته ذبح کوي او که مخته ذبح وکړي بیاو یبنتان واخلي دواړه طریقې سمې دي.

**مسئله** :- دکوم څاروي چې قربانۍ کول جوازنه لري، په هغه عقیقه هم نه کېږي ، که ئې قرباني رواوي عقیقه ئې هم روا ده.

**مسئله** :- دعقیقې په غوښه کې اختیارلري که ئې خامه (اومه) ویشي او که ئې پخه اوخلک رابولي دواړه صحیح دي.

**مسئله** :- دعقیقې دغوښې خوړل پلار، مور، نیکه او اناټولو ته صحیح دی.

**مسئله** :- که دچاوس (طاقت) نه وي دماشوم عقیقه دې یو څاروي وکړي او که هیڅ عقیقه ونه کړي هم پروانه لري. (بهشتي زیور توک۳ مخ ۲۳)

**یادونه**: داد ثواب خبري دی: له عبثیاتو څخه ځان ساتل پکښې په کار دی. کله که درواج په مصیبت کې سړی راګیرېږي عقیقه دې پرېږدي، کله خوراد رواج په توګه څوکاله وروسته عقیقه کوي. دښه تفصیل لپاره دزمامرتب کتاب داخترا وقرباني مسائل وګورئ.

**دسنت کولو رواج**

**مسئله** :- په سنت کولو کې هم دخرافاتو رواجونه خلکو راپیدا کړي دي چې دعقل خلاف اولغو دي. مثلاً څوک یاخط استوي خلک راغواړي، داد سنت خلاف خبره ده. یو صحابي ختنې ته بلل شوي وو هغه له ورتللو څخه انکار وکړ چا ځیني وجه وپوښتله. هغه وویل: درسول الله ﷺ په زمانه کې مونږ ختنې ته نه تللي یو اونه مو ددې لپاره څوک رابللي دي. له دې حدیث شریف څخه معلومېږي چې دکوم شي مشهو کول ضروري نه وي، دهغه لپاره خلک رابلل اوغونډول دسنت

خلاف عمل دی. په دې کې ډیر رسمونه ګډ شوي دی چې په خوراپراخه کچه ورته اهتمام کیږي. ځینی ځایونه دهمدي رواج له امله سنت کول دومره وځنډیږی چې ماشوم لوی شي اوراغونه خلک ئي بدن ګوري. حال داچې له سنت کوونکي پرته نوروته ئي کتل حرام دی. داګناه په دي بلنه اوځنډ کي رامخته کیږي. اصل خوداده چې ماشوم ئی دزغم قوت ولري باید سنت شي. (بهشتي زیور ټوک ۲ مخ ۱۵)

**دختنې لپاره بلنه**

**مسئله** :- دختنې په وخت خلک رابلل یوبدعت دی. عثمان بن العاص ﷺ چاختنی ته بللی وو، هغه انکاروکړاووئي ویل: (درسول الله ﷺ په زمانه کي هیڅکله ختني ته څوک تللي نه دي)

اودابلنه دومره ضروري بلل چې ختنه تربلوغ پوري ورته ځنډول، یوه بله ګناه ده. (امدادالمفتین ټوک ۱ مخ ۳۱)

**مسئله** :- دختني دسنت کولو، لپاره کومه نیټه مقرره نه ده، تروسه (طاقته) پوري اړه لري که ئي قدرت درلودژردي وکړي، کنه تربلوغ پوري دي وځنډوي. (رفاه المسلمین مخ ۳۱)

**مسئله** :- چیري چې په واده یاختني کی بدعتونه موجوددي. په دي بلنه کی دي څوک ګډون نه کوي. نه دهغه په کوراونه په بل کورکي. که ئي کورته خواړه دراستول که دفتني ویره نه وه مه ئي ځیني اخلئ خوکه ئي په نه اخیستلوکي فساد پیښیدی بیادي ځیني واخیستل شي. (فتاوی رشیدیه مخ ۱۲۳)

**مسئله** :- دختني یانورومراسمو په وخت کي که ئي درواج ګڼلو په ډول څه شی مسجدته ورکول نونه دي اخلي که ئي په خپله خوښه امام

یامؤذن ته څه ورکول نو اخیستل ئې پروانه لري، څه شی ورکړل شي هغه ئې حق دی . که ئې کوم شی بیا مسجد ته ورکړل هغه د مسجد حق دی. (فتاوی محمودیه توک ۱۵ مخ ۴۰۱)

**مسئله** :- دواده ،ختنې یانورو خوشحالیو کې ما شوم ته بنکلي جامې اغوستل او شرعي حدود ساتل صحیح دی خو هار د غاړې ،امیل دي نه ورته په غاړه کوي، سهره دي نه تړي اوله نورو هندي رسمونو څخه دې پرهیز کوي. (فتاوی محمودیه توک ۱۷ مخ ۴۲۳)

**مسئله** :- داخبره غلطه ده چې له ختنې پرته نکاح نه صحیح کیږي ،دادناپوهانو خبره ده پرته له ختني نکاح صحیح ده . (فتاوی دار العلوم قدیم توک ۱ مخ ۱۹)

**دقران کریم شهیدګول**

**مسئله** :- داعادت هم ډیردی چې که نعوذبالله دقرآن کریم بې ادبي وکړای شي دهغه دوزن برابر غله(غنم،اوربشي،جواریانورڅه) خیرات کوي. داپه اصل نیک کاراو مصلحت ته نژدې دی. دکفارې او جرمانې په توګه صدقه ورکول دي او پر نفس هم التزام دی چې بیا احتیاط وکړي. خودوې خبرې پکښې داصلاح وړدي:

اوله خبرداچې : قرآن کریم په تله کی له غلې سره تلل دی بل داچې داکارواجب ګڼې (داشرعي اصل نه دی ) خو که محضی د مصلحت لپاره په اټکلي ډول غله دانه یابل څه ورکړل شي پروانه لري.

(اغلاط العوام مخ ۷۵)

**مسئله** :- ځینې خلک دجمعې په ورځ اخترراتلل نامبارک ګڼې داخیال بالکل غلط دی بلکه په دی کی دوه برکتونه یوځای کیږی.

(اغلاط العوام مخ ۱۸۸)

## ایاتر دوه دوه ځوړ لوورو سته په دعاکې لاس پورته کول سنت دی

**مسئله** :- په هره سنت او مستحب دعاکې لاس پورته کول ضروري نه دی يعني ترځوړ لوورو سته د دعالپاره لاس پورته کول سنت نه دی. دطواف کولو په وخت کې دعاسنت ده خولاس پکښې نه پورته کيږي. په لمانځه کې د ننه هم دعاشته، دخوب په وخت کي، مسجد ته د ننوتلو په مهال ،له مسجد څخه دراوتلو په وخت، دمجامعت په وخت، بيت الخلاء ته د تللو اوراوتلو په وخت په دعاکې لاس پورته کول سنت نه دی. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۵۴ - احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۶۲)

## دحائضي دلاس څه شی خوړل

**مسئله** :- مشهوره ده څونفاسه میرمن غسل ونه کړي دهغې دلاس خواړه خوړل صحيح نه دي صحيح. داهم غلطه ده. په حيض اونفاس کې لاسونه ناولي نه وي.

**مسئله** :- په عوامو کي مشهوره ده چې په څلويښتي کې دي دزيږيدلو ځای ته ځاوندنه ورځي داهم اصل نه لري.

**مسئله** :- عامې میرمني په څلويښتي کې څه هم پاکي شي بیاهم ترڅلويښتوورځوپوري لمنځونه کوي. داخبره ددي خلاف ده. څلويښت ورځي دنفاس هغه زياته موده ده ،کمه موده ئي حد (اندازه) نه لري هروخت چې پاکي شي غسل دی وکړي اوسمدستي دی لمونځ پيل کړي.

**مسئله** :- همداشان که ترڅلويښتو ورځو وروسته وينه بنده نه شي ځان دی پاک بولي غسل دي وکړي اولمونځ دي پيل کړي.
(اغلاط العوام مخ ۴۲)

## دګنج العرش اوقدح دعاویل

**پوښتنه :-** پنج سورة چې په هرمسجد کي موندل کیږي هلته پکښي دګنج العرش، قدح اونوروتوموتودعاوي دي. ددي شرعي ثبوت شته؟ ځیني علماء کرام ددي ویل منع کوي

ځکه دګنج العرش ثبوت په صحاح ستة اونوروحدیثونوکي نشته.

په پنج سورة کي دګنج العرش ددعاپه اړه لیکل شوي دي چې داد عاد جبرائیل ﷺ په واسطه دوحي په ډول تازه له شوي ده. ددي دعا ډیر فضائل بیانوي نوپه دي امورو کي راته لارښوونه وکړئ:

١- آیادګنج العرش ددعاثبوت له صحیح حدیثونوڅخه شوی دی؟

٢- رسول الله ﷺ په خپل مبارک ژوند کي همدا دعالوستي اویائي کوم صحابي ته ورښودلي ده؟

٣- که ئي ثبوت په صحیح حدیثونوکي نه وي نوترڅنه چې ئي کوم خلک دثواب په نیت وائي ثواب ئي ورته رسیږي ؟ مفصل جواب راته ووایاست !

**ځواب :-** بِاِسمِهٖ تَعَالٰی حَامِداً وَّمُصَلِّیاً وَّمُسَلِّماً.

(١، ٢، ٣) : یاده شوي دعاموضوعی روایات لري. کوم معتمداومشهورمحدث ئي تصدیق کړی نه دی نودادعامستنده بلل اوفضائل ئي صحیح ګڼل غلطه خبره ده. دقرآن کریم تلاوت اوپه حدیثونوکی مقبول مناجات اونورچې دعلماوومعمولات پاته شوي دی وربانديې اکتفاکول غوره دی.

دقدح ددعاپه هکله چې په پنج سورة کی کوم روایات دي. موضوعی دي نوهغه دی مستنداوصحیح نه ګڼل کیږي اودهغوئ مطابق دی

عمل هم نه کیږي. دقرآن کریم تلاوت دالله ﷻ دقرب دحاصلولو ښه ذریعه ده. په حدیثونو کې دقرآن کریم دتلاوت ډیر فضائل ذکرشوي دی. خلک دقرآن کریم دتلاوت، پوهیدلو اوورباندی دعمل کولو هڅه نه کوی او غیرمستند وشیانوته ناست وي. دقرآن کریم تلاوت دي په خاصه توجه او شوق سره کیږی ورسره دي دالله ﷻ ذکراودلومړي، دریمي او څلورمي کلمی، استغفار اودرود شریف وائي.

**په محمودیه فتاوی کې راځي:**

**پوښـــــتنه** :- دنورنامه، عهدنامـــــه، دعاء گـــنج العـــرش، درودتاج، درودلکي اصلیت څه شی دی؟

دهغوئ تعریفات صحیح دي او که مبالغه ده؟ ثبوت ئي له رسول الله ﷺ څخه راغلی دی او که خلکو تألیف کړی دی. دلوستلو په هکله ئي څه ډول مسئله ده؟

**ځواب** :- هغه په کوم صحیح سند ثابت نه دی. کوم تعریفونه چې ورته لیکل شوی دی کوم اصل نه لري دهغوئ په بدل کې دي قرآن کریم تلاوت شي، درود شریف، کلمه شریفه او استغفار دي ووائي.

(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۹۴)

**دخواجګانو ختم په ډلیزه توګه په دوام سره ویل**

**پوښتنه** :- ځیني ځایونه دخواجګانو ختم په ډلیزه توګه ویل کیږی. ددي حکم څه دی؟ آیا تل لوستل به ئي بدعت او مکروه نه وي؟ بینوا توجروا.

**ځواب** :- په دی لړکي دی احقریوه پوښتنه له مفتي محمد یحیی صاحب څخه وکړه. مفتي یحیی صاحب له مفتي محمود حسن ګنګوهي څخه دهغي په اړه جواب وموند اوهغه ئي ولیکی. غوره ده چې هغه سوال اوجواب رانقل شي. انشاءالله ستاسو دسوال جواب به وویل شي.

**پوښتنه** :- زمونږدمشرانود خواجګانوختم معمول دی اوورسره دیسین شریف سورة هم په ډلیزه توګه لولي اودعاهم په ډلیزه توګه کوي، په دی هکله شرح صدرنشته تاسوراته ددي دجوازدلائل وښیاست، وئي لیکئ مهرباني به مووي. داشکال وجه ئي دعبدالله ابن مسعود ﷺ واقعه ده چې په رحیمیه فتاوی (ټوک۱ مخ ۳۰۲-۳۰۷)کي دازالة الخفاء الاعتصام اومجالس الابرارپه حواله لیکله شوی ده. ځیني حضراتو درحیمیه فتاوی ترمکالمي وروسته داخبره کوی چې په سهارنپور، دهلي اونوروځایونوکي دخواجګانوختم اودیسین ختم کوی آیاداعمل دعبدالله ابن مسعود ﷺ دواقعي خلاف نه دی؟ اوداالزام مالایلزم نه دی؟ په دي دواړوکي فرق څه دی؟ که دا دعلاج یادآفاتودرفع لپاره تجویزشوی وي نوعلاج اوآفات خوموقت شیان دي لکه قنوت نازله چې په ځینوحالاتوکي ویله کیږي اومداومت ورباندي نه کیږي دلته دي هغسي وشي. فقط والسلام. بینوا توجروا.

**ځواب** :- حامداً مصلیاً ومسلماً.

دوه شیان دي یومداومت اواصرار، ددواړوحکمونه سره بیل دي. په مندوب(مستحب) امرباندی مدوامت قبیح نه دی. فقهاووپرمندوب

امرباندي اصرارمکروه بللی دی. اصرار دي ته وايي چې کوم عمل تل کوي اوکه ئې څوک ونه کړي هغه ګنهکار بولي دهغوئ تحقیراوتذلیل کوی. دامکروه ده. که پر مندوب امرمداومت وي خو اصرارنه وي نومندوب دمندوب پر حال پاته کیږي. مثلاً څوک تراودس کولووروسته تحیة الوضوء کوی خوضروري ئي نه بولي اوڅوک چې ئي نه کوی هغوئ هم ګنهکارنه بولي اوهغوئ نه ملامتوي نوپه دي کي کوم کراهت نشته. کوم اعمال چې دعلاج لپاره کوي نودهغه دسبب له وجې څخه ئي کوي ترڅوورته اړتیاوي هغه کوی. قنوت نازله خودامام شافعی رحمة الله علیه په مذهب کي دسهارپه لمانځه کي دتل لپاره ویله کیږي. خوامام ابوحنیفه رحمة الله علیه هغي ته دعامی ابتلاء په وخت کي اجازه ورکړي ده. نوسبب ئي ابتلاء عامه ده ترڅوهغه ابتلاء وي ویله کیږي اوچې داسبب ئي ختم شي بیانه ویله کیږي. دخواجګانوختم دبرکت دحصول لپاره کیږي. دادمشائخو مجرب عمل دی چې ددي په برکت دعاقبلیږي. خوکله چې داسي وي چې دبرکت خواهش نه وي. نوترڅوئي دبرکت دحصول غوښتنه وي هغه وائي. داچې دبرکت غوښتنه تل وي نوورباندي مداومت کوي خو اصراردي ورباندي نه کوي. فقط.

(فتاوی رحیمیه توک ۱۵ مخ ۴۷۲)

**دسواء لک دختم ثبوت**

**پوښتنه** :- دچادمړینی یادمصیبت ددفعي لپاره کلمه طیبه یاآیة الکرسی ویل کیږی چې شمیرئي یولک پنځه ویشت زره واري معلوم کړی دی. په دي کوم شرعي دلیل شته آیاتعداد معلومول بدعت دی؟

**ځواب** :- دمصيبتونو ددفع کولولپاره چې ختم کوي دادعلاج لپاره دي. ددي ثبوت له قرآن کريم اوحديث څخه ضروري نه ده. دومره کافي ده چې هغه دقرآن کريم اوحديث شريف خلاف نه وی نو بيا په شريعت کي ممنوع اومذموم نه دی. لکه غيرشرعي دم کول چې ممنوع دی. په ختم کي چې کومه شميره معلومه ده هغه داسي نه ده لکه دلمانځه رکعتونه يادطواف دگرزيدلو شميرچې ورته صراحتاً تعدادبنودل ضروري دی. بلکه دا داسي دی لکه دطبيب نسخه چې وليکي: عناب پنځه داني، بادام اووه داني.. چې په تجربه ورته ثابت دی. ددي ثبوت له قرآن کريم اوحديث شريف څخه بي مورده ده. داچې ختم دعلاج لپاره ده نودبدعت سوال پکښې ختم دی. شميرپه تجربه سره تعينول دشريعت خلاف خبره نه ده. دعلاج لپاره داووځاګانواوبه له اوومشکونو څخه غوښتل په حديث شريف کي ثابت دی. (فتاوی محموديه ټوک ۱۲ مخ ۱۲۳)

**دمصيبت په وخت کي ديسين شريف دسورة ختم**

**مسئله** :- دبلاوواومصيبتونو ددفع اودبرکت دحصول لپاره ديسين شريف ختم ددينی مشرانويومجرب عمل دی. ترڅو مصائب وي په دي عمل کول اودعلاج لپاره ختم کول کيدلای شي خودادي مسنونه طريقه اوشرعي حکم نه ګڼي اوکه څوک په دي ختم کي ګډون نه کوي په هغوئ دي بدنه وائي. (فتاوی رحيميه ټوک ۱۰ مخ ۴۷۰)

**مسئله** :- دخواجګانو دبرکت دحصول لپاره ويل کيدلای شي. دادمشايخو مجرب عمل دی. دهغه په برکت دعاقبليږي.

(فتاوی رحيميه ۷ مخ۴۷۲)

## په سیندکی دصدقي په نیت روپئ اچول

**پوښتنه** :- پر سیند دپاسه دتیریدلو پرمهال مسافران په سیند کي روپئ اچوي آیا داعمل دصدقي په څیر دبلا ودافع کیدلای شي؟

**ځواب** :- دا صدقه نه ده. بلکه دمال ضائع کول دی دادثواب کارنه دی دوبال موجب دی. (آپ کی مسائل توک ۸ مخ ۱۲۹)

## دتعمیر پر بنسټ کي وینه تویول

**مسئله** :- دنوي ودانئ دجوړولو په وخت کی ځیني خلک څاروي حلالوي وینه ئي په تهداب کي تویوي اوغوښه ئي خیرات کوي یاسره اوسپین زرپه تهداب کي اچوي، داشرعي اصل نه لري.
(آپ کی مسائل توک ۸ مخ ۱۳۸)

## پر نوي ودانئ یادګان خوشحالي کول

**مسئله** :- دنوي ودانئ په خوشحالي کي څه شی ویشل پروانه لري خوچې په دي ویش کي کوم تفاخراوځان ښودنه نه وي.
(فتاوی محمودیه توک ۱۷مخ ۳۳۴)

**مسئله** :- په شکرانه (خوړه) کي فقیرانوته صدقه ورکول یاخپلوان رابلل صحیح اودبرکت باعث دی. که هغه پر کښت کرونده وي یادڅاروی حلالول یاغوښه اخیستل وي ،صحیح دی.
(فتاوی محمودیه توک ۱۷ مخ ۴۰۲)

**یادونه** : ځیني ځایونه دحاصلاتو پر مهال مشرکین څاروي حلالوي اوعبادت کوي که داشکل وي بیادکروندی په ځای ئي په کورکي کول یاهلته پخول اوخلک رابلل ښه دی ترڅوله غیرمسلم سره مشابه نه وي. *(محمد رفعت قاسمی رحمة الله علیه )*

## دچیچک لپاره تدبیرکول

**پوښتنه :-** دچیچک (کوي) دناروغي دخوندي توب لپاره سره زرپه غاړه کوي اودکوراهل په همدي شپوورځوکي جامي نه بدلوي یاجامي بدلوي خودناروغ کوټي ته نه ورځي یاله هغه ځخه په راتلوسمدستي دمریض خوني ته نه ورځي یاڅه شی نه پخوي اونورڅه شرعی اصل لري؟

**ځواب :-** که تجربه کارطبیب یاحکیم ووائي چې داسي مریض ته دغوښي بوي یاپخول یادجاموبوي مضر(ضررناک)دی نودعلاج لپاره داسي پرهیزکول پروانه لري. خودغیرمسلم خلکوپه عقیده که ووائي چې په دي سره ماتاجې (یابل څه)ناخوښه کیږي داناجائزدی داداسلام داهل عقیده نه ده. له خلاف الشرع امورو څخه ځان ساتل لازم دی (فتاوی محمودیه ټوک ٦مخ ۷۷)

**مسئله :-** دطاعون اوچیچک له ناروغیودځان ساتلوپه خاطردپیچکاریٔ په څیرنورتدابیرنیول هم جائزدي. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۷ مخ ۳۱۰)

## دپوجا(نذراوعبادت) لپاره چنده ورکول

**پوښتنه :-** زموږپه دفترکي دهري پنجشنبي په ورځ غیرمسلم خلک دنذرلپاره چنده ټولوي که ئي ورنه کړودښمنان کیږي اودهمدي پوجادشیریني حکم څه دی؟

**ځواب :-** که دروپوله ورکړي څخه خلاصون نه وي بیادي دغوښتونکي دمالک کیدلوپه نیت ورکړي بیادی هغه له خپله لوري چې هرچیري مصرفوي، مصرف دي کړي. شیریني ئي هم که اخیستل

ضروري وي وادي خلي بيادي کوم څاروی ته ورکړي. دغيرمسلم دنذراوعبادت شيريني اونورڅه دي نه خوري. (فتاوی محموديه ټوک ۱۷ مخ ۴۸۲)

**غيرمسلم خلکوته دهغوئ دخوشحالي دورڅومبارکی ويل**

**مسئله** :- دغيرمسلم خلکودخوشحالي دورڅومبارکی ويل په خط کی ليکل که کومه شرکيه اوکفريه جمله پکښي استعمال نه شي بياپروانه لري والافلا. (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ ۴۸)

**دغيرمسلم دپسرلي په خوشحالي کی ګډون کول**

**مسئله** :- داچې په قبرپرستي اوتعزيه کي ئي ګډون کول جوازنه لري نوپه هولي(دپسرلي په لمانځلو کي به ئي ګډون کول څنګه جوازولري . يعني جوازنه لري. دهمدي ورځي په مناسبت اورونه بلول شاوخواپکښي ګرزيدل، سجده کول اوڅه شی نذرکول حرام اومشرکانه فعل دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۱ مخ ۱۵)

**مسئله** :- په قرآن کريم کي راغلي دي چې دمصيبت په وخت کی (انالله واناالیه راجعون) ويل کيږی. اوڅوک ئي دغيرمسلم پر مړينه ووائي چې هغه دځان لپاره غم وګڼي. خوپه حديث شريف کي راځي چې دفاجرپه مړه کيدلودالله ﷻ بندګانوته په ځمکه کي راحت پيدا کيږي (آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۳۰۵)

**دلمرتندراوحامله ميرمن**

**پوښتنه** :- دلته داخبره مشهوره ده چې کله لمرتندرونيسي حامله ميرمن اوخاونددي دغوځولواوريبلوکارنه کوي که نه داولاددبدن به ئي يوه برخه غوڅه شوي وي. ددي شرعي حيثيت څه دی؟

**ځواب** :- په حديث شريف کي دي: په دغسي وخت کي دي صدقه اوخيرات کيږي دتوبه ايستلو، استغفار، لمونځ اودعاحکم شوی دی .دنوروخبروذکرنشته. نودادي شرعي نه ګڼي دايوازي توهم دی چي له غيرمسلم معاشري څخه راغلی دی. خوکه حکيم اوډاکټردتجربي په رڼاکي څه ووائي هغه بيله خبره ده. (آپ کی مسائل توک ۸مخ۲۲۵)

**مسئله** :- مشهوره ده چي دلمرياسپوږمۍ دتندرپه وخت کي خوړل څښل منع دی. ددي هم کوم اصل نشته. خوهغه وخت الله ﷻ ته دتوجه وخت دی اوخوړل څښل پريښودل بله خبره ده. پاته داخبره شوه چي خلک ددنياکاروباران ترګناه پوري هرڅه کوي خوخوړل څښل پريږدئ داشريعت بدلول اوبدعت دی. (اغلاط العوام ۱۸۹)

## دبسم الله پرځای ۷۸۶ ليکل

**مسئله** :- ۷۸۶دبسم الله شريفي عدددی. له مشرانوڅخه ددي ليکل راروان دی. غالباً دارواج له دي امله شوی وي چي خطونه ولوستل شي بيابي اچوي نوبيادبسم الله بي ادبي کيږي. له دي بي ادبي څخه دځان ساتلولپاره مشرانودبسم الله پرځای ددي عددليکل پيل کړی دی خوکه دبي ادبي انديښنه نه وه بيادبسم الله ليکل وړاومناسب دی .(آپ کی مسائل توک ۸ مخ ۳۴۸)

**مسئله** :- دبسم الله په عوض د۷۸۶ليکل دبسم الله دليکلوثواب نه لري. دادبسم الله عدددی چي ورڅخه يوازي اشاره کيږي. (فتاوی محموديه توک ۱۸ مخ ۳۵)

**مسئله** :- ځيني خلک د «السلام عليکم» پرځای مسنون سلام ليکي. که په ليک کي څوک وليکي: (ترمسنون سلام وروسته عرض کيږي چي...) داچي په شريعت کي داصيغه دسلام نه بلکه «السلام

عليکم»ده نود سلام مسنون دلفظ جواب ورکول واجب نه دی که څه هم ليکل ئي جائزدی.

**گټه**: له دی څخه ثابتيږي کوموموشرانوچې دسلام په عوض سلام مسنون ليکلی. دااحتياط پکښې مراعات شوی دی په مخاطب باندې دسلام جواب واجب نه شي لکه دپرچلوپه وخت کې چې الحمدلله وروائي يادسجدی آيت په لوړږغ نه وائي ترڅوپه نورو واجب نه شي. (اغلاط العوام۱۳۱)

**دوير(غم) مراسم اوميلمستياوي**

**مسئله**:- مړينه چې دغم اوويرمهال وي، دريمه، لسمه، څلويښتې، شپږمياشتې، کلنې، تلنه اونوريادوي. اوپکښې ډيراهتمام کوی ميلمستياوي ورکوي که ئې خپل څواک نه درلودپور(قرض) ورته کوي خلک هم پکښې داسې ګډون کوي لکه په ښادي کې چې ګډون کوي ميرمنې دښکلوجامواهتمام کوي. داټول شيان بدعت اوناروادي.

**مسئله**:- څه لوستل يابې وزلوته څه شی ورکول ياد ثواب درسيدلو نورڅه اومړي ته دمغفرت دعاغوښتل په يقيني توګه ثابت دی. مړي ته دثواب ايصال پرته له شک څخه جائزدی خوسمه لاره اوطريقه ئي داده چې انسان څه ولري له هغه څخه صدقه ورکړي ياکوم بدني عبادت، نوافل، روژه، دقرآن کريم تلاوت، درودشريف ويل يانورڅه ولولي اوچې چاته ئي غواړي ثواب ئي وبخښي يادمړه شوي خپلوان له خپلودوستانوڅخه وغواړي چې ورته دعاوکړي اوهغوئ څه ولولي ياکوم خيرات دي وکړي. فقيه حافظ الدين ابن شهاب

کردري (المتوفى ۸۲۷ھ) وائي: (وَيُكْرَهُ اتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ فِي أيَّامِ الْمُصِيبَةِ لِأنَّهَا أيَّامُ غَمٍّ، فَلَا يَلِيقُ فِيهَا مَا يَخْتَصُّ بِإظْهَارِ السُّرُورِ، وَإنِ اتَّخَذَ طَعَامًا لِلْفُقَرَاءِ كَانَ حَسَنًا)

(فتاوى بزازيه على هامش الهنديه توک ۲ مخ ۳۷۹، كتاب الكراهية فصل ۹)

**ژباړه**: دمصيبت په ورځوکي ميلمستيا کول مکروه دی. ځکه هغه دغم ورځ ده. کوم کارونه چې دخوشحالي لپاره ځانګړي وي ددي ورځو وړنه دي. که بې وزلو ته خواړه برابرکړي دا غوره دی.

دهند سترمفتي مولاناکفايت الله ليکي:

**ځواب**:- مړيو ته دثواب استول مستحسن دی دمالي اوبدني عباداتو ثواب ورته رسيږي. خوهغه صورتونه چې شريعت ورته غوره کړي نه دي دهغوئ غوره کول اوبياثواب ګڼل اوکټوربلل بدعت دی. شرعي صورت ئي دادی چې که څوک مړي ته دثواب رسيدلو په نيت کوم بدني عبادت کوي لکه لمونځ کول، روژه نيول، قرآن کريم تلاوت کول، درود شريف ويل يانوراودهغه ثواب که چاته بخښي داسي دی ووائي: (اى الله ﷻ ! ماچې دالمونځ وکړيامي روژه ونيوله يامي تلاوت وکړيامى درودشريف وواي ودهغه ثواب په خپل فضل اورحمت سره فلاني مړي ته ورسوه) همداسي که دمالي عبادت ثواب ورته بخښي نوهرڅه چې په وس کي لري هغه دي دخداى ﷻ په لارکي صدقه کړي، مسجددي جوړکړي ځاه دي وکاږي، سراى يامسافرخانه دي جوړه کړي، ديني مدرسه دی جوړه کړي، اوپه پورتني طريقه دی دهغوئ ثواب مړي ته وبخښي. دا طريقه دثواب رسيدلو صحيح طريقه ده. دي ته کومه خاصه نيټه ياورځ ټاکل په هغي کي دثواب زياتوالى ګڼل اوکوم شرعی دليل هم ورته نه لري ياخاص شی مقررول

یاپر خاص لکه پر خاص قبرصدقه کول یاله جنازې سره یوځای وړل اوهغه ضروري ګڼل اونوررسمونه چې پاته دي داټول دشریعت خلاف اوبدعت دی. خواړه له ځان سره ایښودل اوفاتحه لوستل هم کوم اصل نه لري. که دخوړوصدقه کول مقصدوي هغه دی صدقه کړي، مستحق ته دی ورکړي. که ئې دتلاوت یادرودشریف ویلودثواب لیږل مقصدوی هغه دي وبخښي. خوددواړودثواب درسیدلوشرط دانه دی چې خواړه ترڅنګه کښیږده اوبیاځه ووایه. داشرائط نه له شریعت څخه ثابت دي اونه معقول دي..لنډه داچې ثواب بخښل پر خپل ځای ښه کاردی خوددي اکثرمروج اواجونه ناجائزاوبدعت دي. (کفایت المفتی ټوک ۴ مخ ۱۱۳)

دنوموړي دوهمه فتوی: ثواب بخښل جائزبلکه نیک کاردی. خودهغه صحیح شرعي طریقه داده چې انسان که څه لري هغه صدقه کړي یاکوم بدني عبادت لکه نفلي لمونځ وکړي نفلي روژه ونیسي یاتلاوت وکړی اوثواب ئي چې چاته غواړي وبخښي. د ورځی یا کوم معلوم شی تعین نه کړي اونه دی داضرورواولازم ګڼي. دریمه لسمه، څلویښتي دهمدي مشخص کولوله امله چې مستقل رواج ګرزیدلی، بدعت دی دادریمه اورواج په توګه ترسره کول دثواب موجب نه دی نوثواب بخښل به ئي څنګه وي. (کفایت المفتی ټوک ۴مخ ۱۳۲)

مقصدداچې دریمه، لسمه، دوولسمه، څلویښتي، شپږمیاشتنی یاکلنی تلنه اسلامي مراسم نه دی دپردیوقومونودګاونډیتوب اوتقلید نتیجه ده. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۳۹۴-۳۹۷)

## پر مزارونو باندې عرس او قوالي

**مسئله** :- دقبرونو زيارت کول په يقيني ډول مسنون کار دی، له مزارونو څخه عبرت اخيستل د دعا او مغفرت غوښتلو لپاره هلته تلل جائز دی. منع نه دی خو دعرس رسم چې هر کال دوفات په ورځ هغه ضروري ګڼل دی دا نا جائز او بدعت دی. د رسول الله ﷺ او صحابه وو په دور کې د دې مثل نه ليدل کيږي. دا د اهل کتابو (د پرديو) رواج دی. که دا اسلامی حکم يا دينی امر وای، صحابه وو به تر هر چا وړاندې د رسول الله ﷺ عرس کړی وو يا به ئې د راشده خلفاوو عرس کړی وو. په حديث شريف کې د دې ممانعت ثابت دی. د رسول الله ﷺ ارشاد دی:
(لاتجعلوا قبری عيداً) (زما قبر اختر مه ګرزوئ) (مشکوة شريف مخ ۷۲)
يعني لکه څنګه چې په اخترونو کې خلک سره غونډيږي هغسې په کومه نيټه زما پر قبر مه غونډيږئ. په اختر کې دري شيان وي: د نيټې تعين. اجتماع او خوشحالي کول. له دې حديث شريف څخه په مزارونو باندې د راغونډيدلو تاريخ مشخص کول او خوشحالي کولو ممانعت ثابتيږي. علامه محمد طاهر پټني د دې حديث شريف په تشريح کې وائي: (لَاتَجْتَمِعُوا لِزِيَارَتِهِ اجْتِمَاعَكُم لِلعِيدِ، فَاِنَّهُ يَومُ لَهوٍ وَسُرُورٍ وَحَالُ الزِّيَارَةِ بِخِلَافِهِ وَ كَانَ دَابُ اَهلِ الكِتَابِ فَاورَثَهُمُ القَسوَةَ)
يعني د حديث شريف مطلب دا دی چې د قبر د زيارت کولو لپاره د اختر په څير مه غونډيږئ ځکه د اختر ورځ د لوبو او خوشحالي ورځ ده خو د زيارت کولو شان له دې څخه بيل (جلا) دی. (د زيارت کولو مقصد عبرت حاصلول، مرينه، آخرت او خپل انجام يادول دی.)
پر قبر باندې د عرس جوړول د اهل کتابو رواج دی چې له همدې وجې ئې زړونه هم سخت شوي دي. همدا وجه ده چې د رسول الله ﷺ

دقبردزيارت کولوورځ معينه اوټاکلي نه ده. دکال په جريان کې چې څومره مينه وال ورته ځي راځي زيارت کوي ثواب ورته رسيږي. داچې درسول الله ﷺ په روضه دعرس غونډه نه کيږي ددين دنورومشرانوعرس به څنګه جائزوي. له همدي امله ديني مشرانو، محدثينواوفقهاووپه ځرګندوالفاظوداورواج عرس ناجائزبللی دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۱۰ مخ ۴۰۹)

قاضي ثناءالله پانی پتي په خپل تفسيرمظهري کي وائي: ناپوه کسان چې داولياوولـه قبرونوسره څه کوي يعني قبرونوتـه سجده کوي، طواف پري کوي، هغوئ روښانه کوي اوهرکال داخترپه څيرورباندي راغونډيږي اودعرس نوم ورکوي داټول امورناجائزدي. (فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۳۱۹)

**مسئله** :- قبرونوته دميرمنودتللواوداشخاصوورتلل عرس ته له دي وجه منع شوی دي چې هلته اعتقادي اوعلمي خرابئ پکښي دي. سربېره پر دي ترعرس وروسته ورشي ځکه په ميلوکي اکثراً بدعتونه اونامشروع امورترسره کيږي اوعوام لـه هغوئ څخه دځان ساتلوځواک نه لري اوداولياووپه دربار(مزار) دګناه ارتکاب لاسخت دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۳۰۹، رشيديه مخ ۵۵۵)

**مسئله** :- دمشرانوپر قبرونوعرس جوړول، ځادرونه غوړول، نذرونه منل اوغوښتنه کول ناجائزاوحرام دی دعرس بنياد غالباً داسي ايښودل شوی دی چې دشيخ ترمړينی وروسته دهغه مريدان کوم چی راغونډ شوي دی څه وعظ اونصيحت ئـي کـړی دی خووروورودامقصدتري پاته شوی اودهغوئ ځای ناستوپه منظم ډول دهغوی دهډوکودخرڅولودنده پيل کړي ده. دعرس شريف په

نوم دمشرانو پر قبرونو سلګونو بدعتونو ، محرماتو او خرافاتو طوفان راولاړ کړی دی. دا چې دقبرپلورلو کار رونق موندلی دی نو ځيني ځايونه دجعلي قبرونو جوړول پيل شوي دي. (آپ کي مسائل توک ١مخ٣٦٢)

**مسئله** :- ځلويښتي ،تلني او نورو لپاره دومره خبره کافي ده چې که دا ښه او دثواب کار وای نو رسو ل الله ﷺ او صحابه وو به نه وو پرېښی. ځکه هغوی پر هرنيک کارمين وو. خو هيچا په کوم کمزوري روايت هم له هغوئ څخه نقل کړی نه دی او علماوو ددي بدعت او ناجائزتوب په ښکاره الفاظو ويلی دی. خو دمړي اهل ته دتعزيت لپاره ورتلل ،قرآن کريم ويل ،څه خواړه يانور څه ورکول او مړي ته ئي ثواب بخښل ثواب دی خو چې په ټاکلو نيټو نه وی او دنوم اوريالپاره نه وي.
(امدادالمفتين توک ١ مخ ١١)

**مسئله** :- ځيني خلک پر قبرونو باندي نذرونه کوي. دا چې له دی څخه ئي مقصد داولياوو تقرب او خوښي غوښتل دی او هغوئ حاجت رواکمي ځکه هم داعقيده شرک او دنذرخوړل ئي هم ناجائزدی. دالله ﷻ فرمان دی: (وما اهل به لغير الله)

**مسئله** :- ځيني خلک داسي تأويل کوي چې زمونږ مقصد بي وزلو ته ورکړه ده خو دا چې بي وزله خلک پر قبرونو سره راغونډيږي نو مونږئي هلته وروخو دا يوازي حيله ده ځکه که همدا بي وزله خلک هغوئ ته په لاره مخامخ ورشي هيڅ به ورنه کړي که څه هم هغوی ئي تري وغواړي. داجواب ورکوي چيري چې ئي وروهلته لارسيدلي نه يو. له دي څخه ثرګنديږی چې مقصودئي قبروي بي وزله خلک ئي مقصد نه وي. هلته ئي وړي او هلته (شيريني) خواړه او نور څه ويشي داپه قبرايښودلو ته څه وجه او ضرورت دی. (اصلاح الرسوم مخ ١٢٥)

**مسئله**:- ثواب بخښل پرته له داسي پابندي چې ثابته نه وي داګټور کاردي اودحديث شريف اوفقه له کتابونو څخه ثابت دی خودکومي ورځي مثلاً دپنجشنبي پابندي ثابته نه ده ،بلکه بدعت ده. همداسي دنيټي پابندي مثلاً دربيع الاول يا دشعبان پنځلسمه يادمحرم لسمه نيټه يانورو پابندي ثابته نه ده. دابدعت ده. همداسي دکوم خاص شي لکه حلوا ،شربت يانورڅه پابندي هم ثابت نه دي. داهم بدعت دی. همداسي دکوم ځای پابندي هم نشته نو پابندی ئي بدعت ده. (فتاوی محموديه ټوک١ مخ٢٢٠- ،امدادالاحکام ټوک١ مخ٢٠٦)

## پرقبرونو باندي سجده کول

**مسئله**:- پرقبرونو سجده کول حرام دی. ام المؤمنين عائشه رضی الله تعالی عنها وائي: رسول الله ﷺ په وروستنيوورځوکي وفرمائل: (لعن الله اليهودوالنصاری اتخذوا قبور انبياءهم مساجد)

يعني په يهودواونصاراووډي دالله ﷻ لعنت وی هغوئ دخپلو نبيانو قبرونه دسجدي ځای ګرزولی وو. (بخاری شريف ټوک١ مخ١٧٧)

په بل حديث شريف کی دي: عن جندب ﷺ قال سمعت النبی ﷺ يقول الاوان من کان قبلهم کانويتخذون قبور انبيائهم وصالحيهم مساجد،انی انهاکم عن ذلک . (رواه مسلم)

حضرت جندب ﷺ وائي: ماله رسول الله ﷺ څخه واوريدل چې وئي فرمائل: واورئ: ترتاسي وړاندي خلکو دخپلو نبيانو اوولیانو له قبرونو څخه دسجدي ځای جوړکړی وو. زه تاسو له دی کارڅخه منع کوم .(مشکوة مخ٦٩)

يعني: له عطاء بن يسار ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمائل : ای الله! زماقبرت مه ګرزوي چې دهغه عبادت وشي. (سجده ورته

وشي. دالله غضب دي وي پر هغوخلکو چې دخپلو انبياؤله قبرونو څخه ئي دسجدي ځايونه جوړکړي دي.

په يوه بل حديث شريف کی دي: (عن قيس بن سعد ...الخ) قيس بن سعد ﷺ وائي: کله چې زه هديري ته ولاړم ماهلته خلک وليدل چې خپل سردارته به ئي سجده کوله. ماپه زړه کی وويل: رسول الله ﷺ ددي زيات مستحق دی چې ورته سجده وشي. بيا چې درسول الله ﷺ حضورته حاضرشوم. څه چې مي ليدلي وو هغه مي ورته بيان کړل اوورته خپل خيال می څرګند کړچې ته ددي ډيرمستحق ئي چې درته سجده وشي. رسول الله ﷺ وفرمائل:

(ارأيت لو مررت بقبري اكنت تسجدوله؟ فقلت: لا! فقال: لاتفعلوا، لوكنت امراحداً ان يسجدلاحد، لامرت النساء ان يسجُدْنَ لازواجهن لما جعل الله لهم عليهن من حقٍّ. (رواه ابوداؤد)

يعني ګوره که ته زما په قبرتيرېږی هغه ته به سجده کوي؟. ماعرض وکړنه هيڅکله نه. وئي وفرمائل: نو(په ژوندکي مي هم راته) سجده مه کوئ. که ماچاته امرکولای چې مخلوق ته سجده وکړئ نوميرمنوته به می حکم کړی وای چې خپلو خاوندانوته سجده وکړئ، دهغوی دحق له امله چې پر هغوئ الله ﷻ دسړيو حق ايښی دی.

(مشکوةشريف مخ ٢٨٢ باب عشرة النساء)

همداسي په يوه بل حديث شريف کي دي: يوځل يواوښ راغی. رسول الله ﷺ ته ئي سجده وکړه. صحابه وورسول الله ﷺ ته عرض وکړ: تاسوته حيوانات اووني سجده کوي نومونږډيرحقداريوچې درته سجده وکړورسول الله ﷺ وفرمائل: (أعبُدُوا رَبّكُم وَاكرِمُوا اخاكُم)

یعنی دخپل رب عبادت وکړئ (هغه ته سجده وکړئ) او دخپلوورونو عرت وکړئ. عائشه رضی الله تعالی عنها روایت کوي : اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِی نَفَرٍ مِنَ المُهَاجِرِینَ وَالاَنصَارِ فَجَاءَ بَعِيرٌ فَسَجَدَ لَهُ فَقَالَ اَصحَابُهُ: يَا رَسُولَ اللهِ! تَسجُدُ لَكَ البَهَائِمُ وَالشَّجَرُ فَنَحنُ اَحَقُّ اَن نَسجُدَ لَكَ فَقَالَ: اُعبُدُوا رَبَّكُم اَكرِمُوا اَخَاكُم وَلَو كُنتُ اٰمُرُ اَحَدًا اَن يَسجُدَ لِاَحَدٍ لَاَمَرتُ المَرأَةَ اَن تَسجُدَ لِزَوجِهَا الخ (مشکوة شریف ص ۲۸۳، باب عشرة النساء)

په دی مبارکو حدیثونو کی غورو کړئ رسول الله ﷺ دقبرلمانځني په هکله څومره شدت کړی دی او په څومره شدت سره ئي ممانعت کړی دی. په کوم قبرچې سجده کیږی هغه ئي بت بللی او په سجده کوونکی باندي ئي لعنت ویلی دی او هغه ئي داسي دغضب سبب ګڼلی دی. پر قبرد سجدی په هلکه قاضی ثناء الله پاني پتي په «مالابدمنه» کي وائي: (دانبیاوواواولیاووپر قبرونو سجده کول ،ورباندي طواف کول ،څه ورڅخه غوښتل دهغه په نوم نذرکول حرام دی. بلکه ځیني شیان پکښي کفرته رسیږي ،رسول الله ﷺ ورباندي لعنت ویلی اوله هغه ئي ممانعت کړی دی او فرمایلي ئي دي: زماله قبرڅخه بت مه جوړوئ. (یعني لکه کفارچې له بتانو سره معامله کوي هغسي زماله قبرسره مه کوئ. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۱۴-۴۱۲)

**پر قبرونو طواف کول**

**مسئله** :- مزارونو ته تلل پر قبرونو طواف او سجده کول دهغي دراو دیوال ښکلول په شریعت کی حرام دی. شاه محمد اسحاق محدث دهلوی رحمة الله علیه د (شرح مناسک په حواله لیکي):

**پوښتنه**:- پر قبرباندي دري ځله راګرزیدل اوطواف کول وانسان کافرکیږي، مشرک یا فاسق ګرزي؟

**ځواب**:- پر قبردري ځله یاکم اوزیات ګرزیدل شرعاً ناجائزاوحرام دی دحرامو په ارتکاب چې څوک مصروي هغه فاسق دی اوکه ئې جائزاومستحب وګڼي اوطواف وکړي دکفرموجب دی. ملاعلی قاري رحمة الله علیه په شرح مناسک کي رواړي دي: ولایطوف الخ.. طواف دي نه کوی یعنی درسول الله ﷺ پرقبردي نه ګرزي طواف دکعبي شریفي لپاره ځانګړی دی نودانبیاؤاواولیاؤپرقبرونوطواف کول حرام دی. الخ (امدادالمسائل ترجمه ماته مسائل مخ ۷۵-۷۶ اوفتاوی رحیمیه ټوک ۱۰مخ ۴۱۳)

**پرقبرونوڅراغ بلول**

**مسئله**:- پر قبرونودڅراغ بلولورسول الله ﷺ نه یوازي داچې ممانعت کړی دی بلکه پر داسي کوونکوئي لعنت ویلی دی نوداحرام دی. په حدیث شریف کي دي: عَنِ ابنِ عبّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا قَالَ: لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ زَائِرَاتِ القُبُورِ وَالمُتَّخِذِينَ عَلَيهَا المَسَاجِدَ وَالسُّرُجَ. (رواه ابوداؤدالترمذی والنسائی) (مشکوة شریف ۷۱، باب المساجد ومواضع الصلوة)

**ژباړه**: له عبدالله ابن عباس ؓ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ پر هغو میرمنو لعنت ویلی دی چې قبرونو ته ځي اوپر هغو خلکو چې پر قبرونو سجده کوی اوورباندي څراغونه بلوی. ملاعلی قاری حنفی ددي په شرح کی وائي: په قبردڅراغ لګولوممانعت یاله دي وجې دی چې بې ګټي دمال ضیاع دی اوچاته ئي ګټه نه رسیږي اوددي لپاره چې اوردوزخ نښانه ده له قبرڅخه ئي لیري کول ښه دی او یائي

ممانعت له دی امله دی چې قبرونه له غیرشرعي تعظیم څخه وساتل شي، چې پر قبر له سجدی څخه ممانعت هم له دی امله دی.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۱۳)

**پر قبرونو ګلان اچول**

په حدیث کې دومره ثابت دی چې یوځل رسول الله ﷺ پر دوو قبرونو تیریدی وئې فرمائل: دادواړه په عذاب کې دی. رسول الله ﷺ دخرمایوه لمده څانګه دوه ځایه کړه اوپر هرقبرئې یوه ،یوه ټوټه واچوله اووئې فرمائل: هیله ده ترڅودا وچیږي ددوئ په عذاب کې تخفیف (لږوالی، سپک والی) وي. (بخاری ، مسلم دمشکوة مخ ۴۲ په حواله)

که په دي حدیث شریف عمل وشي او کومه شنه څانګه پر قبرودروي لکه دپټولو په وخت کې چې کومه څانګه (شناخته) باندي ودرول شي . نوهغه له ګلانو سره ولي ځانګړي شي دالمده اوشنه څانګه اسانه اومفت موندله کیږي ګلان به اخیستل کیږي که هغه روپۍ مړه شوي ته دثواب په نیت خیرات شي نومړي ته به ئې ګټه زیاته وي. معلومه ده چې ګلان دمړي دمراسموپه مهال غوړول کیږي چې حراموالی ئې څرګند دی یایورسم دی چې مال ضائع کیږي اودهندوانورسم دی اومسلمانانوته دکفارواوفساقوسره ورته والی حرام دی. (مالابدمنه مخ ۱۳۱)

**مسئله** :- مړی ته دثواب رسیدلوپه هیله غوره صورت دادی چې څه ولوستل شي یاصدقه اوخیرات وشي ثواب ئې ورته وبخښي اودعاورته وکړي داشیان مړه شویو کسانو ته ګټوردي، روح ئې وراندی خوشحاله کیږي اوداطریقه له سنت سره برابره ده.

داوایوچې دبدعتونو استدلال په حدیث شریف باطل دی. رسول الله ﷺ پر قبرونو باندي دخرماشنې څانګې ودرولي ګلان ئې وربانـدی نه

دي اچولي نو که ددي خلکو مقصد د سنت اتباع وي ورته وړادی چې شني ځانګي ورباندي واچوي نه داچې ګلان پري وغوړوی، کنه معلومه ده چې مقصدئي ابتداع ده خو نه اتباع.
بله خبره داده چې رسول الله ﷺ همدا ځانګي د ګنهکارانو پر قبرونو واچولي نه د صالحانو پر قبر. اوس که مقصد اتباع د سنت وی نو د فساقو پر قبرونو دي ځانګي او ګلان اچوي خو دوئ داسي نه کوي بلکه هغوئي ئي دداسي خلکو پر قبرونو اچوی چې د عذاب احتمال ئي شته خو کیدلای شي امکان ئي هم نه وي. نو ښکاره ده چې مقصد اتباع نه ده بلکه مقصد ابتداع ده او دا استدلال ئي د احکامو په استنباط نه ده بلکه د تحریف له جملي څخه دی. اعاذنا الله من ذالک.
(امداد المسائل ترجمه مأته مسائل مخ ۸۴)

**مسئله** :- له حدیث شریف څخه د بدعتونو استدلال سراسر باطل دی.
څکه رسول الله ﷺ پر قبرونو باندی د خرمادوني شني ځانګي واچولي ګلان ئي نه دی اچولي که ددي خلکو مقصد اتباع وي نو د خرماو ځانګي دی ورباندي واچوي. بله خبره داده چې دا عمل د ګنهکارانو له قبرونو سره شوی دی نه د صالحانو. دا خلک ئي د فساقو او فجارو پر قبرونو نه اچوي چې د هغوئ د عذاب احتمال خو شته خو ممکن عذاب نه وي. نو ثابته ده چې ددي خلکو مقصد اتباع نه ده بلکه مقصدئي ابتداع ده.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۱۷)

**مسئله** :- پر قبرونو له څراغ لګولو څخه رسول الله ﷺ نه یوازي داچې ممانعت کړی دی بلکه پر داسي کوونکوئي لعنت ویلی دی.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۲۱ - د مشکوة ټوک ۱ مخ ۷۱)

**مسئله** :- پر قبر طواف کول، ښکلول حرام دی.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۲۱ - احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۷۴ او اصلاح الرسوم مخ ۱۲۲)

**مسئله** :- ترپټولو وروسته پر قبر باندې اوبه پاشل جائز دی، ګلان اچول د سنت خلاف دی او اوړه وربانده اچول عبث خبره ده او که ځراغ وربانده ولګوي مکروه او ممنوع دی. (آپ کی مسائل ټوک ۱ مخ ۳۱۲)

**پر قبرونو څادر غوړول**

**پوښتنه** :- یو څوک وائي چې پر کعبه باندې پوښ اچولی نو پر قبرئي اچول څه خبره ده ؟

**ځواب** :- په حدیث شریف کی پر دیوال څادر غوړل منع شوی دی. سره له دی چې په دي کار کي په ښکاره کوم قباحت او دشرک ویره نشته. نو پر قبر پوښ اچول د شرک له وهم او غیر الله د تعظیم له امله په اوله درجه ممانعت دی. رد المحتار ټوک ۱ مخ ۸۲۹ - امداد ټوک ۱ مخ ۲۰۱)

خود کعبې مبارکې غلاف رسول الله ﷺ وربانديې اچولی دی، د هغې تعظیم شرک ته نه رسیږي ،له همدي امله هغه لورته په لمانځه کي مخامخ دریدل ضروري دی خو د لمانځه پر مهال قبر ته مخ اړول مکروه دی. (احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۷۲ - امداد الاحکام ټوک ۱ مخ ۱۸۴)

**مسئله** :- پر جنازه باندی د ګلانو څادر بدعت دی. که څوک د هغي جنازي له لمانځه څخه انکار وکړي صحیح دی. (احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۷۸)

**مسئله** :- د مړی د ښخولو په مهال په قبر کی د خوشبوي لښتي (عود یا نوره) اچول ناجائز او بدعت دی. په دي کي د شرک ثبوت نشته (احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۷۱)

## پر قبراذان کول بدعت دی

**پوښتنه** :- تر ښخولو وروسته پر قبر اذان کوي وائي شیطان تښتي او مړي ئي له شرارت څخه خلاصیږي ددي حکم څه دی؟

**ځواب** :- پر قبر اذان کوم اصل نه لري له سنت سره موافق کار نه دی. بدعت دی پریښودل ئي واجب دی.

**مسئله** :- د رسول الله ﷺ او صحابه وو په زمانه کي په زرګونو کسان مړه شوي دي، هغوئ په خپلولاسونو ښخ کړي دي د قبرله عذاب او دشیطان له شرارت څخه هغوئ ښه خبروو خو په کوم قبر د اذان کولو ثبوت ئي نشته. آیا هغوئ د خپلو مړو خیر غوښتونکي نه وو؟ داچي رسول الله ﷺ او صحابه وو د چا پر قبر اذان نه دی کړی نو چاته جوازنه لري چي پر قبر اذان وکړي. علامه ابن حجر رحمة الله علیه وائي: پر قبر اذان کول بدعت دی څوک چي ئي د ماشوم په غوږکي په اذان کولو قیاسوي چي یو مندوب عمل دی او اذان علی القبر سنت بولي دا غلط ده او قیاس ئي صحیح نه ده. (فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ ۲۰۲)

**مسئله** :- تر ښخولو وروسته په اجتماعي او انفرادي ډول مړي ته دعاکول، مغفرت غوښتل، او دنکیر منکر په جواب کي ورته د ثابت قدمی دعا غوښتلو ترغیب په ابو داؤد (توک۲ مخ ۲۰۳) کي راغلي دي (فتاوی محمودیه توک ۱ مخ ۱۹۲- فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ ۲۰۱ - عالمګیري توک ۱ مخ ۱۶۲)

## مزارته روپۍ ورکول څنګه دی؟

**پوښتنه** :- موټرونه په لاره تیریږي کوم مزار په مخ ورځي خلک چاته روپۍ ورکوي چي مزارته ئي ورکړي، دا منارته روپۍ ورکول څنګه دی؟

**ځواب** :- قبراو مزارته چې کومي روپئ ورکولي کيږي که مقصد پکښي فقيرانواو مسکينانو ته صدقه وي خو جوازلري او که دمزارنذرانه مقصود وي نوناجائزدی اوحرام. خو نن دخلکوله حال څخه ځرګندیږي چې دعوامو مقصد دو همه خبره ده نومنع کول ئي ضروردی. (آپ کی مسائل توک ۱ مخ ۲۵۱)

## مړي ته نعري وهل

**مسئله** :- څوک چې مزارته لاړشي هغه که دعالم، ولی یاهرڅوک وي او ووائي: ای فلانیه زمالپاره دعاوکړه چې فلانی کارمي وشي یاوائي له قبرڅخه رابهرشه (راووزه) اوداسلام مرسته وکړه یانورداسي الفاظ ووائي دانعري وهل مکروه دی او که ئي داخرابه عقیده هم وه چې مړي دخدای ﷻ دخلقت په کارخانه کی دخیل وګڼي نوحرام ده. (امدادالاحکام توک ۱ مخ ۲۲۳- اوعین الهدایه توک ۱ مخ ۷۲۲)

## دروح تیښته

**مسئله** :- دځینو خلکوداباوردی چې څوک ځان وژنه وکړي، دهغه روح لاره ورکوي، تښتي بیانه موندله کیږي. داغلطه اوبي اصله خبره ده په شریعت کي کوم اصل نه لري. خوځان وژنه یوه ستره ګناه ده. (اغلاط العوام مخ ۲۷)

**مسئله** :- ځیني عوام وائي که کومه میرمن دحیض یاداولادزیږولو په مهال ومري هغې ته به دوه ځله غسل ورکول کیږي. داغلطه اوبي اصله خبره ده. (اغلاط العوام مخ ۴۲)

**مسئله** :- ځيني خلک وائي : کله چې مود غير مسلم جنازه وليد له نوداوايا ست : (في نارجهنم خالدين فيها) په شريعت کي ددي کوم اصل نشته . (اغلاط العوام مخ ۲۱۸)

**مسئله** :- دجنازي دوړلو پر مهال په زوره نعت ويل يادرود شريف او کلمه ويل جائز نه دی خو که پټه خوله په زړه کي کلمه شريفه ويله کيږي پرو نه لري . (اغلاط العوام مخ ۲۱۸)

**مسئله** :- ځيني خلک دجنازي دلمانځه دتکبيرونودويلو په مهال مخ اسمان ته ګرزوي دا بي اصله خبره ده . (غلاط العوام مخ۲۱۶)

**مسئله** :- دپټولو په وخت مړی ته اذان کول بدعت دی . له مشرانو رانقل شوي نه دي . (فتاوی دارالعلوم ټوک ۱ مخ ۱۹)

**مسئله** :- مشهوره ده که کومه ميرمن دحيض په مهال ومري ، هغه شيشکه (بلا ) کيږي او ځوک خوري . داخبره شرک ده . (اغلاط مخ ۲۱۲)

**مسئله** :- دجنازي ترلمانځه وروسته بيالاسونه اوچتول دعاکول بدعت دی . دپرېښودلو دی . (امدادالاحکام ټوک۱مخ۱۹۵)

**مسئله** :- که دشريعت خلاف کارونه کيږي دزړو ميرمنو (سپين سرو )قبرونو ته تلل جائزدی . ځواني ميرمني دي نه ځي ځکه پکښي فتنه ده . (امدادالاحکام ټوک۱ مخ۸۱۳)

**مسئله** :- مشهوره ده چې که مړی په کور يا کلي کی وي دهغه تروړلو خوړل چښل ګناه ګڼي . داخبره غلطه ده . اصل نه لري که څوک وږی وي ددوډۍ دی وخوري ممانعت نه لري .

**مسئله** :- ځینی عوام دا اهتمام کوي چې مړي ته د کورله لوښو غسل ورنه کړی ،نوي لوښي راوړي له هغوئ څخه غسل ورکوي بیا د غه لوښي مسجد ته ورکي. دا بیخي غلطه ده. بې اصله ده. (اغلاط العوام مخ ۱۹۲)

**مسئله** :- ځیني خلک په هغه ځای کی چې مړي ته ئي غسل ورکړی وي تر دریو شپو څراغ لګوي دا خبره بې اصله ده. (اغلاط العوام مخ ۲۱۲)

**مسئله** :- په کفن یا قبر کي عهد نامه یاد کوم ولي شجره یا قرآني آیت یا کومه دعا ایښودل صحیح نه دی او په کفن یا سینه باندي په کافور یا سیاهي کلمه طیبه یا بل څه لیکل دا صحیح نه دی.
(اغلاط العوام مخ ۲۰۸)

**یادونه**: د مړي په خرابیدلو او بدبویه کیدلو ددي شیانو بې احترامي کیږی. دا پریښودل په کارد ی خو هغه شیان چې په شریعت کی د ادب دا درجه نه لري که ئي په قبر کی کښیږدي پروانه لري لکه د کوم بزرګ کالي یا نور. *(محمد رفعت قاسمی)*

**مسئله** :- د میر منو رسم دي چې د میره د مړیني له امله جامي چیري (پري ) کوي دا د غیر مسلم قوم رسم او مالي نقصان دی نه دي چیري کوي، کاږي دي او تر عدت وروسته دي بیا اغوندي ،خو که ئي په اغوستلو یا کښلو کي مزاحمت وي بیا دی پري کوي. ګوتي ګوتمی هم داسي دي. (اغلاط العوام مخ ۲۱۴ د امداد الفتاوی په حواله)

**مسئله** :- دنیاته د مړه شو یو خلکو د روح د راتګ خیال غلط دی. که هغه نیکان دی بیا دنیاته راتلل نه غواړي او که بدان دي هغوئ ته د راتلو اجازه نشته.

**مسئله** :- ځینی جاهلان خلک وائي چې که میر من دماشوم زیږولو په مهال مړه شي هغه خبیثه روح ګرزي. دابالکل غلطه ده بلکه په حدیث شریف کی راځي چې دا میرمن شهیده ده. (اغلاط العوام مخ ۱۹)

**مسئله** :- ځیني خلک داباورلري چې دبرات په شپه دمړو کسانو روح کورته راځي اوګوري چې څوک زمونږلپاره څه پخوي کنه. داخبره په نقلي دلائلو ثابته نه ده داباورباطل دی.

**مسئله** :- دځینو کسانودا عقیده ده که په هم داسی شپه مړوته دثواب لپاره څه ونه بخښل شی هغه روح سوزیږي. داټولي داټولي خبري بي اصله دی په شریعت کی کوم اصل نه لري. (اغلاط العوام مخ ۱۹)

**مسئله** :- دعوامو عقیده ده چې دهري پنجشنبي په ماښام دمړه شویوروح خپلو کورونوته راځي په یوه ګوښه کي وي اوګوري چې څوک راته دثواب کارکوي که څه دثواب شی پیداکړي خوښه ،کنه په ناهیلي سره ځي. داخیال غلط دی اوخرابه عقیده ده. په شریعت کی اصل نه لري. (اغلاط العوام مخ ۲۰)

## دقبردزیارت کولولپاره سفرکول

**مسئله** :- دعرس کول یاورځ معلومول اوپر قبرونوفاتحه ویل اوخلک ورته راغوښتل ،په خیر القرون کي نه دی ثابت بلکه همداسي ممنوعه بدعت ګڼلی دی اوپه شدت سره ئي ممانعت کړی دی.
دقبرونودزیارت ترغیب په حدیثونوکي راغلی دی خوداقید نشته چې دخپل ښارقبرونوته لاړ شئ اودسفر ممانعت ئي هم نشته. عائشه رضی الله تعالی عنها دخپل ورورعبدالرحمن ﷺ زیارت ته تللي ده اوهغه له مدیني منوري څخه لیري دی. په حدیث شریف کی مسجد ته

دسفرکولوممانعت راغلی دی چې په یوه مسجدکي تربل فضیلت مه بولئ اوورته سفرمه کوئ. یوازي دریومسجدونو(بیت الله شریفه، بیت المقدس ،نبوي مسجد ) ته پر نوروفوقیت حاصل دی دهغوی دفضیلت دترلاسه کولوپه غرض ورته دسفرکولواجازه ده. (فتاوی محمودیه ټوک۱مخ۱۵۲)

## دمړی دخښتن له لوري دمیلمستیارواج

**پوښتنه** :- ددي میلمتیاپه هکله څه حکم دی چې دمړي خپلوان ئي چمتوکوی اوخلک ورته رابولي دواده په څیرپکښې دي خپلوان اودوستان پکښې راغونډیږي اودارواج ضروري هم ګڼي.

**ځواب** :- دامروجه میلمستاناجائزه اوبدعت ده. اوځودلائل پکښې شته:

۱-: په حقیقت کي دادهندوانو(غیرمسلمو ) رواج دی اوپکښې له هندوانوسره ورته والی دی.

۲-: په شریعت کی دغم په وخت کی مشروع نه دی. په فقه کي په دی هکله تصریح موجودده.

۳-: دادعوت لازمی پیژندل التزام د مالایلزم دی چې ناجائزده.

۴-: په دي دعوت کی چې څه شی مصرفیږی په هغه کي دماشومانواویتیمانوبرخه هم وي. دنابالغ مال دصدقي اوخیرات په ډول خلکوته ورکول هم جوازنه لري.

۵-: په دي دعوت کي دثواب خبره هم نه راځي بلکه ریاپکښې مطلوب وي یائي دخلکوله بدویلواوطعني ورکولوله امله کوي اوداشرک اصغردی.

الف: په صدقه کې اخفاء (په پټه ورکړه) افضله ده. نو که دې خلکو ته داخفاء ترغیب ورکړل شي نه ئي مني.

ب: صدقه په نقدي ډول خوراغوره ده. ځکه اخفا؟ء هم پکښې اسانه ده اوپه بې وزلوکې ئي ګټه هم زیاته ده چې که کوم ضرورت لري هغه به وربانديي پوره کړي اوکه اوس ورته اړتیاونه لري دبیاضرورت لپاره به ئې وساتي اوداګټې په دعوت کې نشته. کله لاخواړه مضرهم وي خودنقدي صدقې ورکړې ته څوک هم نه حاضرېږي.

په دوهمه درجه کې دصدقې غوره صورت دادی چې دبې وزلوحال وليدل شي اودضرورت وړشي ورته صدقه شي يعنی ناروغ ته دوا، مسافرته کرایه، دلاري خرڅ، وږي ته خواړه، لوڅ ته جامه، جوړه یادیخني په فصل کی بړستني کمبلي لنډه داچې دضرورت دپوره کولوخيال ئي وساتل شي. خودلته په هرحال خواړه خوړل کیږي نورکه ناروغ بې دوامري، لوڅ یخ لړزوي، بې وزله ګرمي سوځوي یامسافرین له کم خرڅي څخه کړیږي.

که همدې خلکوته دمیلمستیاپرځای دصحیح طریقې دصدقه کولومشوره ورکړې چې بې وزلوته ګټوره ده مړي ته هم اوصدقه کوونکي ته هم غوره ده. نوپه جواب کې وائي که میلمستیاونه شي، ورورګلوي خرابیږي اوزماپوزه پرې کیږي.

ج: که دثواب خبره مقصودوي نوفقیرانواوبې وزله دې لومړي وګڼې خوحال داسې وي چې خپلوان اقتداروالااوشتمن خلک سره راغونډیږي، بې وزله یوازې دنوم لپاره راغواړي، ځيني ځایونه خولادنوم لپاره هم بې وزله خلک نه وي، په داسې دعوت کی څوک داجرئت کولای شي چې ووايي چې دادثواب لپاره ده.

(احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۵۲) اود رد المحتار ټوک ۱ مخ ۲۲۴ په حواله)

## دمړي داهل کورته خواړه استول (لېږل)

**مسئله** :- له شریعت څخه دومره ثابته ده که په کوم کورکي څوک ومړي ګاونډیانو، خپلوانو، اوعزیزانوته ئي بنائي ترهغه چې دغم اودرد زیاتوالی وي دهمدي کورداهل دخوړوانتظام وکړئ، دهغوئ تسلي وکړي، هغوئ وبولي، راوئي غواړي یابي کورته خواړه ورواستوي اودهغوئ دتسلي لپاره په خپله هم په ډوډئ خوړلوکي ورسره شریک شي. نورڅه ثابت نه دي بلکه دمړي اهل ته دخوشحالي په څیربلنه مکروه ده. په شامی کي راځي که ترپټولوورو سته په اتفاقي توګه یادمړي داهل دتسلي لپاره له هغه سره په خوړلوکي ګډون وکړي داګنجائش شته. خوداچې خپلوان له لیري، لیري راځي، هلته پاته کیږي اودخوشحالي دمیلمستیااوو په څیرراغونډیږي دامکروه اوبدعت دی. (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۴۷)

**مسئله** :- دمړه شوي ګاونډیان اوخپلوان دي یوازي دیوې ورځې لپاره دهغه کورته خواړه وراستوي همدادیوې شپې ورځې لپاره مستحب کاردی. تریوې ورځې زیات خواړه ورته استول مکروه دی. په دي رواج کي د حرج او تکلیف له زیاتوالي سره، سره دابدی هم شته چې عوام ئي یوشرعي حکم ګڼي اوداپه شریعت کی زیاتوب اوبدعت دی .(احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۲۰۴ دردالمحتارپه حواله)

**مسئله** :- دمړه شوی په کورکي ډوډئ ه خوړل کومه شرعي خبره نه ده اودمړي اهل ته هم له خوړلوممانعت شرعي حکم نه دی. دغم دزیاتوالي له امله ډوډئ نه خوړل بله خبره ده. نن سبادارواج ده چې په دي ډیراهتمام کوي چې دمړي په کورکي خواړه ونه خوري هغه ګناه

ګڼي. ددی رواج ترک کول واجب دی. څه ناڅه خوړل غوره دی په خپلوانواو ګاونډیانولازمه ده ترڅوهغوئ خوړلو ته وهڅوي.
(احسن الفتاوی ټوک۴ مخ ۲۱۴)

**مسئله** :- دمړي په کورکی دخوړلولپاره راغونډیدل په یقیني توګه ناجائزاوډیره بي غیرتی ده په دی ګناه کي بلوونکي اوبلل شوی ټول شریک دي. آن نږدي خپلوان هم که دارسم لازم ګڼي اونه ګډون پکښي بدګڼي اوداخواړه دمړي دکورنۍ له لوري وي دابیاهم ناجائزعمل دی. (احسن الفتاوی ټوک۱ مخ۳۸۱ دردالمحتار په حواله)

## دمړي داهل تعزیت

**مسئله** :- دمړي داهل تعزیت یعني تسلي کول ورته دصبرتلقین کول دهغه اومړي لپاره دعاکول مسنون اوپکښي فضیلت ده. په حدیث شریف کي دي: (څوک چې دمصیبت رسیدلي شخص تعزیت وکړی. الله ﷻ ورته دومره ثواب ورکوي لکه دمصیبت څښتن ته چې ئې ورکوي) (ترمذی شریف ټوک۱ مخ۱۲۷)

**مسئله** :- تعزیت تردریوورځوپوري کیدلای شي وروسته مکروه دی. هوکه څوک خبرنه وویادمړي اهل یاتعزیت کوونکی حاضرنه ووبیاتردریوورځووروسته هم کیدلای شي. که بله مجبوري یالیري والی وونودخط په ذریعه تعزیت کیدلای شي. له رسول الله ﷺ څخه په خط سره تعزیت هم ثابت دی. (حصن حصین مخ۱۸)

**مسئله** :- دتعزیت الفاظ په حدیث شریف کی معلوم دی: (الله ﷻ دی درته اجردرکړي.) دصبردی درته غوره بدله درکړي. الله ﷻ دي مړی ویبخښي)

**مسئله**:- که دواړه غیر مسلم وي دا الفاظ دي وائي (الله دي درته بدل درکړي، سړي مو مه کمېږه) (عالمګیري ټوک ۱ مخ ۱۲۷)

**مسئله**:- تعزیت یوازي دنیوي رواج نه دی. بلکه په حدیث شریف کي ثابت اسلامي تعلیم او د اجراو ثواب کار دی. (فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۲۳۲)

**مسئله**:- د مړي تر ښخولو وروسته د کورنۍ له غړیو سره مصافحه (جوړ په خیر) کول د سنت موافق کار نه دی. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱ مخ ۳۲۲ د شامي په حواله)

**تعزیتي جلسه**

**مسئله**:- د چا په مړینه د متعلقینو تعزیه یعني د صبر تلقین په سنت ثابت دی. که دو رتللو موقع نه وه په خط هم د پخوانیو صالحانو ثبوت شته. دا چې پر مړي ډیرو کسانو ته غم رسیږي او ټولو ته رسیدل ستونزمن کار دی نو اسانه لاره ئي داده چې سره راغونډ شي او د ډیرو یو ځای دعا د قبول وړ ده. په داسي کښیناستلو کی کومه شرعي بد ي نشته. خو ډیر ځایونه دي جلسي یوازي د رسم بڼه خپله کړي ده. مقصد ئي داوي چې په اخبارونو کی ئي نوم راشي ، شهرت ئي وشي ، یا وائي که تعزیتي جلسه ونه کړو خلک به مو ملامت کړي یا نو رخه.. د دي پرېښودل ضرور دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۲ مخ ۲۲۵)

**دثواب بخښلو غلطه طریقه**

**مسئله**:- مړي ته د ثواب د بخښلو طریقه خورا اسانه ده. خو کومي طریقي چې نن لیدلي کیږي نه الله ﷻ ویلي دي ، نه رسول الله ﷺ ښودلي دي ، نه صحابه وو اختیار کړي دي او نه امامانو داویلي دی. دا خلک وایي که مونږ دا رسم ونه کړو نو ورولي خرابیږي. دا یوازي بدعت نه دی بلکه شرک هم دی ځکه دا د الله ﷻ په خاطر نه کیږي بلکه

له تولني څخه دومره ویریږي چې له هغې څخه ئې خدای ﷻ جوړکړی دی. داشرک دی چې غیرالله راضي کوي په تولنه کی دارواج نه کول دپوزي پریکیدل ګڼي اوتولنه دخدایي ځای ته رسوي. داستره (لو، غټه) بیغرتي تنني کم همته مسلمانان دچاپه مړینه دڅاروي په خیرپه منډه ورځي ترڅویوه ګوله ورته پیداشي. که په زړه کی دخدای ﷻ ویره نه وي، داخرت فکرنه وی، دحساب اوکتاب ویره نه وي، دخدای ﷻ او اسلام لحاظ نه وي لږترلږه غیرت خوشته. دچاچې کوم خپلوان ومري په هغه خورحم په کاردی یوخوهغه ته مصیبت رسیدلی دی په درملنه ئې مصرف شوی دی خوبیغرته خلک بیاورباندی راتولیږی چې که څه ورته پاته وي نوهغه ورته راوړه چې وئې خوري. که ربښتیاهم دثواب خبره وي، کله مصیبت والاسره په زړه کی ورسره جذبه وی. نودرسول الله ﷺ فرموده ولي کافي نه ده؟
واورئ دثواب بخښلولپاره حقیقت څه شی؟ هرنیک کارچې انسان دځان لپاره کوی هغه دی نوروته دثواب په نیت ورکړي په دې نیت دې ثواب ورته وبخښي. مړي اوژوندي ته ثواب بخښل کیږي نفلي حج اوعمره کیږي طواف کیږی لنډه داهرعمل چې دځان لپاره کیږی یوازي نیت غواړي چې خدای ﷻ ئې ثواب فلان اوفلان ته ورسوي ثواب ورسیږي اودایصال ثواب همداطریقه ده. داثواب تاته هم رسیږي اوچې چاته ئې غواړي هغوئ ته هم پوره پوره رسیږي.
یوه غلط فهمي بله هم ده. خلک داسي پوهیږی چې ثواب یوازي مړه شویوکسانوته رسیږي. خولکه څنګه چې مړه شویوته رسیږي هغسي ژوندوته هم رسیږی. کوم عبادت چې دځان لپاره کوی په هغه کي نیت وکړي چې ثواب ئې فلاني اوفلانی ته ورسیږی ور رسیږي. (اصلاح الرسوم)

**مسئله**:- ځيني خلک څه خوړل صدقه کښي. که بي وزلو ته نقدي روپئ يا غله ورکوله کيږي هغه صدقه نه ګڼي له همدې امله ځيني خلک دپنجشنبي په ورځ څه دخوړلو شيان مسجد ته وړل ضروري ګڼي. حال داچې دصدقي لپاره نه پنجشنبه شرط ده اونه هم مسجد ته استول. ځيني بيا خواړه وخوري خو ترڅو چې ئي دعا اوفاتحه ورباندي ويلي نه وي هغه صدقه اودثواب کار نه ګڼي. دا ډيره غلطه ده. که په اخلاص سره دخداى ﷻ په لارکى څه ورکړل شي، الله ﷻ ئي قبلوى اوکه دهغوى دثواب دبخښلو نيت وکړي هغه ورته رسيږي.

(آپ کى مسائل ټوک ٣ مخ ٤٣٦)

## دثواب دايصال لپاره ولي ميلمستياکيږي

رسو الله ﷺ فرمائلي دي: سَبعَةٌ يُظِلُّهُمُ اللهُ فِى ظِلِّه يَومَ لاَ ظِلَّ الاَّ ظِلُّهُ (الحديث)

اُووه کسان داسي دى چې دقيامت په ورځ چې کوم سيوري نه وي ،هغوئ ته به الله ﷻ درحمت په سيوري کي ځاى ورکړي. خلک به دګناهونو له امله په خپلو خولو کي ډوب وى څومره چې دچاګناوى ډيري وى ،هغومره به ئبي خوله زياته وي. دچا به تر بډيو دچا ترنامه، دچا ترسيني، دچا ترخولي اوډيرخو به لاداسي وي چې ټول په خولو کي ډوب وي. په هغو(اوو کسانو کى به يو هغه څوک وي چې صدقه دومره پټه ورکړي چې که ئي په ښي لاس ورکړي چېي لاس ونه پوهيږى چې څه شى ئي ورکړل. وائي ددى شخص به دومره ستره درجه وى چې دقيامت په ورځ به دحشرله تودوخي خوندي وي اودخداى ﷻ درحمت په سيوري کي به ورته ځاى ورکړل شي. اوس تاسو فکروکړئ چې دپټي صدقي دورکړي څومره ډيراثردى. نودچاپه

مړینه که کومه صدقه کیږي دومره رسمونو او اوازوته څه اړتیاده دامیلمستیاوي ولي کیږي. دمیلمستیا روپۍ دي په بې وزلوزده کوونکو یاد کلي په مسکینانوو ویشي. شریعت ئي له صدقي څخه نه راګرزوي ډیره صدقه دي وکړي خود سنت مطابق دي وکړي. خوخبره داده چې په ټولنه کي ئي پوزه پري کیږي. له ټولني څخه ئي معبود جوړ کړي دي. آیا د قیامت په ورځ په دي جواب ورکولو به خلاص شي ؟ په هغې ورځ به دټولو اعمالو حساب ورکول کیږي. هلته به دچا په کار نه راځي. دخدای ﷻ لپاره لږ فکرو کړئ د دي ټولني درضا کولو لپاره خوعاقبت خراب او تباه شو. آیاداټولنه به هغه مهال په ښه درشي. په پټه صدقه کي څومره ثواب دی. آیاتاسو به هغه صدقه کوئ او که به دعوت کوئ.

**په صدقه کی روپۍ دخه لپاره**

بله خبره داده چې که انسان څه فکروکړي پوهیږي چې دمیلمستیاپه ځای که نقدي روپۍ بې وزلوته ورکړل شي ګټه ئي ډیره ده. ځکه روپۍ ئي دهرحاجت لپاره کیدای شي ، دځای جامي ، دناروغي ددوا ، دسفر کرایه یابل دنیائي ضرورت هرڅه پوره کولای شي. روپۍ داسې شی دی چې هرضرورت پوره کولای شي. که نن ورته ضرورت نه وي دبیاضرورت لپاره په کار کیږي دخوړواړتیاهم وربانديپوره کیږي نوپه صدقه او خیرات کي دنقدوروپو صدقه خوراغوره او افضله ده. په هغې کی بې وزلوته ګټه زیاته ده او ثواب ئي هم زیات دی. په نقدوروپو کی یوښه والی داهم دی چې هغه صدقه پټه کیږي اوپه هغې هغه زیری هم شته چې دالله ﷻ به ورته دخپل رحمت په

سیوري کې ځای ورکړي. بلکه ثې هم هغه ده چې مسکین ته ګټوره ده او ثواب ئې هم زیات دی. خو شیطان ورته وائي چې میلمستیا وکړه، که ئې په خوالا په ګېډه کې دردهم وو بیا به هم خواړه خوري که ثواب وو که نه وو. ډېر خوند خبره خو دا ده چې ثواب بې وزله او مسکینانو ته په صدقه کې ده خو په میلمستیا کې مسکین نژدې هم نه ورځي ټول خپلوان وربانديي راغونډیږي او نوم وربانديي دثواب صدقه ږدي خو خوري ئې بدایان دا غیرت هم څوک نه کوي چې لوی لوی امیران ځانو نه دمسکینانو په ځای ویني، دا څه دول غیرت دی په دریمه، لسمه او څلویښتي یانورو خرافاتو کې امیران او بدایان داسي ګډون کوي ګواکي بې وزله او مسکینان دي ترټولو ځانو نه غریب بولي دا څومره ظلم دی او درسول الله ﷺ څومره ستره مقابله ده. څومره خطا کیدل او په سترګو نوتل دی چې دمسکین په ځای تاست وي او دهغوی حق خوري.

**دثواب لپاره نقده غوره ده**

په نقده او درو پو په صدقه کې هم پټوالی راځي او هم دبې وزلو اړتیاوې پوره کیږي. دثواب لپاره دمیلمستیا لاره غوره کول یو قباحت دی. الله ﷻ فرمائي چې دثواب لپاره، هرڅه ورکولای شي څومره چې موخوښه وي او هرڅیزي چې موخوښه وي او هر وخت چې غواړئ صدقه ورکړئ. په اخلاص سره هرنفلي عبادت خدای ﷻ قبلوی. خدای ﷻ هرځای موجود دی هغه هرڅه وینی، عبادتونه قبلوي سمیع او بصیر دی، علیم او خبیر دی. خو شیطان دانسان لاروهي وائي دمړي دریمه ده خیرات وکړه وروسته وړاندي ئي مه

کوه ،دمړي کره ورشه ،هلته ئي وکړه. که ئي بيل، بيل وکړي الله ﷻ ئي نه مني په اصل کی خوئي بيل، بيل اوپټه صدقه شيطان نه ورسره مني، شيطان ئي په ځان واکمن جوړکړی وي اودهغه طريقه دخدای ﷻ اورسول الله ﷺ دطريقي خلاف ده. داله خدای ﷻ اورسول الله ﷺ څخه بغاوت اوورسره مقابله ده. دالاره چې الله ﷻ اورسول الله ﷺ نه ده خوښه کړي داخلک ئي ولي غوره کوي. يو کمزوری بنده دخدای ﷻ اورسول الله ﷺمقابله کوي. دخدای ﷻ لپاره پر ځان رحم وکړئ. لږفکروکړئ دخدای ﷻ بندګانوته اساني پيداکړئ. تاسوچې هروخت غواړئ، هروخت چې غواړئ نفلي عبادت وکړئ. په هرحال کي چې غواړئ اداکړئ. په بازارکی په مجلس کی ،په کورکي ،په دکان کی، په مسجدکی، په ناسته ولاړه، ولاړه په هرحال کي که هرعبادت کيږی، الله ﷻ ئي هلته قبلوي ورته ثواب ورکوي يوازي دشخص نيت ته اړتياده. يوازي دانيت کول په کاردی چې داثواب فلاني ته بخښم ورته رسيږي. خودملايانوپه جامه کي شکم پرسته کسان بيابيي ځودوئ ناست نه وي ثواب نشته ،دوئ ،ډريوراوګاردي به ئي وي ،غونډه به وي ګواکي الله ﷻ ترغه دانه قبلوي څوهمداکسان نه وي دا ارګابارګانه وي. الله ﷻ دي راته دګيډي له دوزخ څخه امان راکړي، دي ګيډوروخلکودخپلوګيډودډکولولپاره څنګه عوام غلطه کړي دي، داسي ورته وائي که ملانه وی نه مړي ته ثواب رسيږی اونه هم څوک مړي ته غسل ورکولای شي. په پای کي ديوي بلي غلطي عقيدی اصلاح کول هم ضروري دی. هغه داچې وائي کوم شی چې مسکينانوته ورکول کيږي هم هغه مړي ته رسيږي. داغلطه خبره ده.

په دی مسئله پوهیدل هم ضروري ده چې که په کومه کورنۍ کي دخیراوخیرات غلطه طریقه رواج شوي وي که چاته پکښي اصلاح اوتوبه توفیق ورکړل شوی وي، هغه ته لازمه ده چې دکورنۍ تولوغړیو ته وصیت وکړي چې دهغه په مړینه دي هیڅکله کله دادبدعت کارونه نه کوی صدقه اوخیرات دي په سنت طریقه برابرو کړي. داوصیت ورباندي فرض دی. که وصیت ونه کړي که دده په مړینه کوم بدعت یابدرواج کیږي عذاب ئي همدی مړی ته ورکول کیږی. دادي هم معلومه وي چې ترهري یوي ګناه ترعذاب دبدعت عذاب زیات دی. اوکه څومره خلک دده په ویلواووصیت اصلاح شي اوثواب به ئي دده په عمل پاڼه کی لیکل کیږي دبدعت په محیط کي په سنتوعمل کول دسلوشهیدانوبرابرثواب ورکول کیږي.

یاالله ﷻ ! مونږته درسول الله ﷺ رښتونی محبت راوبخښي، صحیح عظمت اواطاعت راته وبخښي. دسنت اتباع راته په برخه کړي. آمین

*(محمد رفعت قاسمی رحمة الله علیه )*

## پر خوړوباندي فاتحه لوستل

**پوښتنه** :- دلته په خیرات کی داسې رسم دی چې خواړه دبي وزله خلکوترڅنګ کښیږدي یوځل فاتحه (الحمد لله) اودري ځله سورة اخلاص (قل هوالله احد الایة ) وائي ثواب ئي مړي ته بخښي. اوبیاهمدا خواړه خوري. ددي شرعي حکم څنګه دی؟

**ځواب** :- دثواب لپاره دفاتحي لوستلوداطریقه کوم اصل نه لری، بدعت ده. ددي په ثبوت کي چې حدیث شریف وړاندي کوي هغه موضوعي ده. (فتاوی رحیمیه ټوک ۳ مخ ۱۹۴)

**مسئله**:- مړي ته د هرې نيکۍ ثواب رسيږي، مړي ته د ثواب رسيدلو په نيت سره هغه ته رسيږي خو داچې خواره ږدي بيا فاتحه وائي او دا ويل چې پرته له دې څخه ئې ثواب نه رسيږي، دا غلطه خبره ده دا کوم دليل نه لري ځان ساتل ورڅخه لازم دی. (فتاوی محموديه توک۱ مخ ۲۲۹)

**مسئله**:- ترمړينې وروسته ترځلويښتو ورځو دوه ډوه رواج بدعت دی، همدا شان يو ولسمه هم بدعت دی. پرته له دې چې رسم او رواج ته وکتل شي خيرا و خيرات مستحسن دي. (رشيديه مخ۱۲۱)

**مسئله**:- پر خوړو باندې فاتحه لوستل بالکل غلطه خبره ده (خو که داسې وکړل شي داخواړه حرام نه دي خوړل ئې جواز لري) خو دا نه لاره رسول الله ﷺ څخه ثابته ده او نه هم له صحابه وو څخه. نه له تابعينو او نه هم له مجتهدينو څخه يوازې يو بدعت او ضلالت دی.
(امداد المفتين توک۱ مخ ۱۰- کفايت المفتي توک۱ مخ۲۱۰)

## دسورة فاتحه لوستلو حقيقت

**مسئله**:- لومړی خو په دې پوهيدل په کار دي چې فاتحه يعنی مړو ته دثواب بخښلو طريقه څه ده؟

دا حقيقت په شريعت کې شته که څوک کومه نيکي کوي، کوم ثواب چې ورباندې مرتب دی هغه له خپله لوري بل ته بخښلای شي. يعنی ويلای شي يا الله ﷻ ددی خير ثواب فلانی ته ورکړی، هغه ته ئې ورسوی. مثلاً: د الله ﷻ په لاره کې څه خواړه، شيريني، روپۍ، جامې يا نور څه ورکړل شي او دعا وکړی چې په دې سره راته کوم ثواب پيدا کيږي هغه فلانی ته ورکړي يا نيمه سپاره قرآن کريم تلاوت کړي يا کوم سورة ووائي او ثواب ئې ورته وبخښي. که کوم کار اوس وکړي

یائي په خوانیکي کړي وي ددواړو ثواب بخښلای شي نوررواجونه هسي چتي دی. مثلاً :

۱- چیري خواړه ږدي څوک ورسره ډیري دقرآن کریم کوم سورة وائي اونوم په نوم ئي ټولو مړوته بخښي په دی خرابه عقیده کي ډیري بدئ شته. مثلاً دنورو جاهلانو عقیده داکیږي چې پرته له دی څخه ثواب ورته نه رسیږي. نو یو یو ورته همداسي ښه راغلاست کوي که همداسي کارونه کړي ورته خواړه نه ورکوي.

**مسئله :-** دلویانو اوولیانو په فاتحه کي یوه بله ورانی هم شته هغه داچې خلک هغه حاجت روا او مشکل کشاګڼي. په همدي نیت ورته فاتحه وائي ورته زاریٔ کوي چې دا او هغه کارئي وشي، حاجتونه ئي پوره شي، اولادئي وشي، داولادعمرونه ئي ډیرشي.

هرمسلمان پوهیږي چې داډول عقیده لرل شرک ده. (الله ﷻ مودي وساتي) غرض داچې داټول بدعتونه اورواجونه پرېښودل په کاردی. که څوک ثواب بخښل غواړي نو په هغي لاري دي وبخښي چې شریعت ښودلي ده. ټول لغوه کارونه دي پرېږدي ددي رواج دي هیڅ پابندي نه کوي چې دهرڅه توفیق لري هغه دي وکړي هغه دي مسکینانو ته ورکړي اوبیادي ثواب بخشش کړي. (بهشتي زیورټوک ۲ مخ ۵۲)

**دفاتحي شریفي مسنونه طریقه کومه ده؟**

**پوښتنه :-** ۱- فاتحه چې په قبرلوستله کیږي مسنونه طریقه ئي څه ډول ده؟

۲- دفاتحي لپاره ولي قبرته ځي. که په کورکي وویله شي ثواب ئي رسیږی کنه؟

جواب۱-: له قبرسره که ورته دعاکوي مسنونه طریقه ئي داده چې کله هدیري ته ورشي ووائي: اَلسَّلَامُ عَلَیکُم یااَهلَ الدِّیَارِمِنَ المُؤمِنِینَ وَالمُؤمِنَاتِ وَالمُسلِمِینَ وَالمُسلِمَاتِ اَنتُم لَنَا سَلَفٌ وَنَحنُ بِالاَثرِیَغفِرُاللّٰهُ لَنَاوَلَکُم اَجمَعِینَ.

داټولومړدګانوته سلام اودعاده. بیابه دتکاثرسورة یوځل اواخلاص (قل هوالله) یوولس ځله اوکه ورته وخت وویسین شریف دي هم یووارولولي. بیادي دعاوکړي اوثواب دي فلان اوفلان اوبیادهدیري ټول اهل ته وبخښي.

۲-: که قرآن کریم په کورکي تلاوت شي اوثواب ئي وبخښل شي ،رسیږي. که یوازي دثواب بخښلواراده وي بیاهدیري ته دتللوضرورت نشته خوکه له ثواب سره ،سره له مړي سره دخواخوږی مقصدهم وی بیادي ورځي هلته دي قرآن کریم تلاوت کړي له دي سره مړي ته خوشحالي زیاته پیداکیږي. (امدادالاحکام ټوک۱ مخ ۱۹۳)

**مسئله** :- دثواب دبخښلولپاره چې کومه طریقه له قرآن کریم، حدیث شریف اوصحابه وو رضی الله تعالی عنهم څخه ثابته ده هغه داده چې څوقرآني آیاتونه تلاوت شي. په فقیرانو، یتیمانو کونډواونوروبې وزلانوخواړه وخوړل شي یاجامه ورکړای شي یاکوم بل دخیرکاروکړل شي بیائي ثواب رسول الله ﷺ اونور هرچاته ئي غواړي وبخښي اوله خلکوپټ داکاریوازي دخدای ﷻ لپاره وشي اونیت ئي داوي چې ای الله ﷻ ! داخه چې مي ولوستل یامي صدقه کړل اویامي دانیک کاروکړ ددی ثواب رسول الله ﷺ اوفلاني، فلاني ته ورسوی. نوري

چې طريقې نن رواج شوې دي، هغوئ له قرآن اوحديث څخه ثابتې نه دي. (نظام الفتاوى ټوک ۱ مخ ۱۵۱)

**دبدعت تعريف**

**مسئله** :- دخداى ﷻ په ذات، صفاتو، اختيار او تصرف کې بل څوک شريک ګڼل داشرک دى. اوکه کوم کار چې رسول الله ﷺ صحابه وو او تابعينو کړى نه وي اوور وسته ددين په نوم پيدا شوي وي اوعبادت ئي وګڼي هغه بدعت بلل کيږي. له دى اصولو سره سم ئي مثالونه تاسو ولټوئ.

**مسئله** :- په درمختار مع حاشيه شامي ټوک ۱ مخ ۱۲۰ کې چې دبدعت تعريف شوى دى لنډيز ئي دادى:

الف: په دين کې داسې نظريه، طريقه او عمل پيدا کول بدعت بلل کيږي چې هغه دنبوي طريقې خلاف وي، هغه له رسول الله ﷺ څخه نه قولاً نه فعلاً نه صراحتاً، نه دلالةً اونه هم اشارتاً ثابت وى.

ب: داغوره کول هم له رسول الله ﷺ سره په ضديت او مخالفت کې نه وي هسى په خپل فکراواټكل يوه خبره ياکوم کار غوره وګڼي اوهغه کوي.

ج: هغه شى به ددينې مقصدلپاره وسيله نه وي بلکه هغه به په خپله دينې خبره منله شوى وي. (آپ کى مسائل ټوک ۱ مخ ۴۵ - نظام الفتاوى ټوک ۱ مخ ۱۳۱)

**مسئله** :- ترکفر اوشرک وروسته بدعت ستره ګناه ده. بدعت هغه څه بلل کيږى چې په شريعت کې اصل ونه لري يعني په قرآن کريم اوحديث شريف کې ثبوت ونه لري. د رسول الله ﷺ، صحابه

وو، تابعینو او تبع تابعینو په زمانه کې موجود نه وي. او هم دا نوی څه د دین کار و بولي.

**مسئله :-** بدعت خورا بد شی دی رسول الله ﷺ بدعت مردود ګڼلی دی ځوک چې بدعت رامنځته کوي هغه ئي دین ورانوونکی ګڼلی دی. رسول الله ﷺ فرمائي : هر بدعت ضلالت دی او هر ضلالت د ګمراهي په اور کې دی. (تعلیم الاسلام ټوک ۴ مخ ۴۲)

**دبدعت ډولونه**

**پوښتنه :-** کوم بدعت، حسنه بدعت هم کیدلای شي؟

**ځواب :-** په بدعت کې حسنه نشته. کوم چې بدعت حسنه بلل کیږي هغه سنت دی خو په اصطلاح کې ئي فرق دی. مطلب ئي یو دی.
(فتاوی رشیدیه مخ ۱۴۲)

**په لغت کې دسنت معنی طریقه هغه که سمه وی او که ناوړه**

دبدعت معنی نوی شی دی چې پخوانه وي. په لغت کې هر نوي شي ته بدعت ویل کیږي. ددي تعریف په اعتبار بدعت همیشه سیئه (بد) او ضاله دی خو په لغوي اعتبار کله حسنه هم وی. (نظام الفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۲۱)

**مسئله :-** د کوم بدعت یادونه چې په حدیث شریف کې په مذمت سره شوي ده ،هغه یو ډول دی او هغه (کُلُّ بِدعَةٍ ضَلالَةٌ وکُلُّ ضَلالَةٍ فِی النَّارِ.(فتاوی محمودیه ټوک ۱۴ مخ ۲۱)

**مسئله :-** هره نوي خبره چې په شریعت کې اصل ونه لري او هغه دین وبلل شي یا پرېښودله شي هغه بدعت او ممنوع دی.
(حاشیه امداد الفتاوی ټوک ۱ مخ ۱۵۲)

**مسئله** :- لکه شرک چې دتوحیدضد دی. همداسي بدعت دسنت مقابل دی. سخت نقصان رسوونکی دی داسنت له منځه وړي اوځای ئي نیسي. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۳۳۷)

**مسئله** :- په شامي کي دبدعت په قسمونو (رقمونو) کي راځي چې تراویح یوځای په جماعت کولو په هکله عمر ﷺ وویل: نعمت البدعة له همدی امله په سیئه اوحسنه وویشل شو که نه حسنه بدعت دلغت په اعتباربدعت دی خو نه په شرعي اعتبارچې کل بدعة ضلالة چې شرعي بدعت اوبدعت سیئه ورڅخه مراددی. هغه چې بدعت حسنه بولي هغه سیئه نه دی بلکه هغه مسلوکه فی الدین دی هغه معین فی الدین دی هغه احداث فی الدین نه دی بلکه هغه احداث للدین دی.
(فتاوی محمودیه ټوک ۱۲ مخ ۱۸۵)

**دبدعت دتفصیل لپاره وګورئ**: براهین قاطعه، فتح الباري، ټوک ۴ مخ ۲۸۷. الترغیب والترهیب مخ ۲۵، اختلاف امت اورصراط مستقیم مخ ۱۰۰، ترمذی شریف ټوک ۱ مخ ۳۳، نسائي شریف ټوک ۱ مخ ۱۳۲، مسلم شریف ټوک ۱ مخ ۲۴۹، مشکوة شریف ټوک ۱ مخ ۲۳۸ باب حرم المدینه.

## بدعت لومړی (اول وار) څنګه رامنځته (پیدا) شو؟

په قرآن کریم کي دسورة مائده دریم آیت دی الله ﷻ فرمائي: (نن مي کامل کړستاسولپاره ستاسودین اوپوره مي کړل نعمتونه په نعمتونه پرتاسواوراضي شوم تاسوته داسلام په دین)

خدای ﷻ خپل غوره اوبهترین نعمت ذکرکړی دی چې ماستاسودین له هرلوري اوپه هرډول بشپړاومکمل کړتاسوته له دي دین څخه دبل دین اړتیانشته اونه له دي نبي څخه پرته دبل نبي ضرورت شته. خدای ﷻ ستاسونبي خاتم النبیین ګرزولی دی. هغه ئي دټولوپیریانانواوانسانانولپاره استولی دی. حلال هغه دی چې دی

ئې حلال کړي او حرام هغه دی چې دی ئې حرام کړي. دین هغه دی چې ده راوړي دی. ددین په بشپړتیا نعمت پوره شو. دا چې زه تاسو ته په همدې دین خوښ یم تاسو هم ورباندې خوښ اوسئ. دا دین خدای ﷻ ته خوښ دی دا فضل رسول په واسطه ئې درته رسولی دی او خپل اشرف کتاب ئې درته نازل کړی دی.

حواله: تفسیر ابن کثیر پاره ٦ مخ ٤٨ سورة مائده دلومړۍ رکوع په تفسیر کې ابن عباس ﷺ فرمائي: د اسلام دین الله ﷻ درته کامل کړی دی تا به تل پاته وي زیاتولو ته محتاج نه دی هغه خدای ﷻ بشپړ کړی دی چې تر قیامته به نه نیمګړی کیږي. په دی دین الله ﷻ خوښ دی هیڅکله به هم نه تري ناخوښه کیږي.

**حواله**: تفسیر ابن کثیر پاره ٦ مخ ٤٨ سورة مائده دلومړۍ رکوع په تفسیر کې دابن ابی حاتم په حواله لیکلي دي: یو شخص وو د خدای ﷻ ددین کلک پابند وو په یوه وخت کې شیطان هغه وغولاوو ورته وئې ویل: هغه څه چې نورو کول ته ئې وکړه. له دې څه درته جوړه ده نه موعام خلک عزت کوي نه شهرت لري تا ته ورده چې نوی شی جوړ کړي خلکو ته ئې وښیه بیا وګوره چې ته څنګه مشهوره کیږي او څنګه به ستا ذکر هر ځای کیږي.

هغه شخص همداسې وکړل. خلکو ته ئې هم وویل او وروسته د هغه تقلید کیده. وروسته پښیمانه شو ملک ئې پریښود په یوازیتوب کې ئې د خدای ﷻ عبادت کاوو خو د خدای ﷻ له لوري ورته جواب ورسیده چې: (که ستا خطاء یوازې ستا وای ما به معاف کړی وای

خو تاعام خلک خطاء کړل هغوئ دی ګمراه کړل په همدي لاره هغوئ مري، دهغوی وبال به له تا سو څنګه لیري کیږي زه مو توبه نه قبلوم )

**حوالـه** : تفسیر ابن کثیر پاره ۶ مخ ۱۲۵ سورة مائده دلسمي رکوع

**تفسیر: حدیث شریف**: عائشه رضی الله تعالی عنها وائي: رسول الله ﷺ فرمائي: څوک چې په دی امر (یعني دین ) کی داسي نوي خبره پیدا کړی چې هغه له دي څخه نه وي، هغه مردود دی.

حواله (۱): صحیح مسلم ټوک ۲ مخ ۲۵ حدیث شریف ۱۸۱ باب ۱۵۹ دقضیه بیان ۲-: مشکوة ټوک ۱ مخ ۱۰۵ حدیث ۱۳۱ دسنتو بیان (۳): مظاهر حق ټوک ۱ مخ ۶۸ دسنتو بیان.

**حدیث شریف**: رسو الله ﷺ فرمائي: که څوک دلته نوي خبره (یعني بدعت ) پیدا کړي یا نوي پیدا کوونکي ته ځای ورکړي پر هغه به دخدای ﷻ ، ملائکو او ټولو خلکو لعنت وي. نه به ئي نفل عبادت قبلیږي او نه هم فرض عبادت (مختصر)

حواله: صحیح بخاری ټوک ۲ پاره ۱۲ مخ ۱۱۵ حدیث ۴۱۳ دجهاد بیان.

زما ګرانه دوسته ! نن سبا په هندوستان کي ډیر بدعتونه رواج شوي دي. دتعجب ځای دادی چې که څوک په بدعت عمل ونه کړي هغه مسلمان نه ګڼل کیږي، هغه له سلامه وتلی بولي. دا فکرو کړئ چې دابدعتونه زموږ دبي سوادي او ناپوهه مسلمانانو په زړونو کي څومره محبوب دی. که څوک بدعت پریږدي ګواکي مذهب پریږدي.

داټول له ګناه دجیب ډکوونکو پیرانو او ګیډه ډکوونکو ملایانو ده. داخلک په علم کي رانده دي او که علم لري نفسانیت وربا ندي غالب دی نو دجاهلانو له خوښي سره سم تأویل کوي، فتوی ورکوي او جاهلان هغه مذهب ګڼي خلک وربا ندی بیا او بل وینې او وربا ندي عمل کوي. داچې ټول په اخته وي که ئي کوم نه کوي وربا ندي فشار

راولي آن چې له تولني ځخه ئي باسي ،ويروي ئي هم. له ماسره هم دغسې وشول خو مختارخداى ﷻ راباندي رحم وکړوئي ساتلم. جهالت ته ګوري دفرض ،واجب اوسنت لپاره پرچا کوم فشارنشته، اخطارنه ورکوي له کومي دلي ځخه ئي نه بيلوى خوديوه بدعت په خاطرچې په شريعت کې سخت وعيدهم ورباندي راغلى دى په کليواوباندو کې ورباندي جګړي کيږي.

**حديث شريف** : حذيفه رضى الله تعالى عنه وائي: رسول الله ﷺ وفرمائل: دبدعتي لمونځ ،روژه،زکوة ،حج،عمره،جهاد ،صدقه فديه هيڅ هم الله نه قبلوي بلکه هغه له اسلام ځخه داسې وزي لکه له سرځخه چې ويښته وايستل شي. حواله.ابن ماجه مخ ۴۰ حديث۵۱..دبدعت داموروبيان.

**بدعت دليونتوب په څيردى**

بدعت په خلکو کې داسې سرايت کوي چې هيڅ عقائداواعمال تري نه پاته کيږي. لکه دليونى سپي بيماري رګ رګ ته رسيږي.

(مظاهرحق توک۱ مخ ۷۹کتاب الايمان)

کله چې يو سپى ليونى شي هغه داوبوله ليدلوويريږي،اوبه چښل اوداوبوترځنګ ورتله اوسيدل نه خوښيږي. همداسې انسان چې بدعتي شي هغه دقرآن اوحديث له اوريدلوويريږي،عمل کولوسره ،سره اوريدل ئي لانه خوښيږي. لکه ځنګه چې ليونى سپى له اوبوويريږي اخيرله تندى مري همداسې په بدعت اخته کسان هم له توبې ځخه برخه نه لري دګمراهي په ځنګل کې مري.

کوم شى چې په شرعي دليل ثابت نه وي،هغه په دين کې داخلول بدعت بلل کيږي. بدعت خوراستره ګناه ده ځوک چې همداسې کارکوي،له خداى ﷻ سره مقابله کوي،ځه په شريعت کې راغلي دي

په هغوئ کي کمی اوزیاتوالی دچاحق نه دی. که څوک په شریعت کی داسي خبره راپورته کوي چې هغه په شریعت کی نه وي، هغه شریعت نیمګړی ګڼي اوله خپله لوري نوی شریعت جوړوي همداڅوک چې ئي جوړوي نوروته ئي په عمل کولوبلنه ورکوي نوګویاد الله ﷻ مقابله کوي. په ښکاره خوداخلک مطیع اودرسول الله ﷺ محبان ښکاري خوداانسان سخت لاروړکی دی اوورباندي رسول الله ﷺ لعنت وائي.

**دبدعتي توبه نه په برخه کیږي**

کوم انسان که ګناه وکړي. امیدلري چې یووخت خوبه توبه وکاږي. که کوم مسلمان کله لمونځ ونه کړي، روژه نه ونیسي، شراب وچښي، قماریاغلاوکړي په هرحال هغه توبه کولای شي ځکه هغه ګناه ګناه ګڼي. خودبدعتي توبه ځکه نه په برخه کیږي چې هغه بدعت عبادت ګڼي اوهغه دخدای ﷻ قرب بولي یادرسول الله ﷺ تعظیم ګڼي یادالله ددوستانواعزازبولي نوبیاتوبه نه کوی، هغه ځان ګهکارنه بولي نودداسي سړي توبه په برخه کیدل محال خبره ده خوالاماشأالله.

ډیرداسي خلک لیدل کیږی چې څه شی ورته درسول الله ﷺ تعظیم ښکاري خوهغه بدعت وي یائي داولیاووعزت بولي خوبدعت وي که هغه ته درسول الله ﷺ صحیح خبري وویل شي هغه ورسره ټکرکوي ځکه هغه خبري ددي بدعتونو خلاف وي.

هرمسلمان نراوښځي ته لازم دی چې کوم کارکوي هغه له قرآن ،حدیث اودصحابه وو له ژوند سره وګوري، تحقیق وکړي له هغوئ څخه دلیل وغوښتي اوکه نه پرید یږدي.

کوم کارچې رسول الله ﷺ اوصحابه وو کړي نه وی اومونږئي ونه کړو دقیامت په ورځ راځخه داپوښتنه نه کیږي چې تاولي داکار کړی نه دی. که هغه ثواب وګڼو اووئي کړو او الله ﷻ دحشرپه میدان راځخه پوښتنه وکړي چې ولي دي کړي دی. نوجواب به څنګه ورکول کیږی؟ زماوروڼوفکروکړئ کوم کارچې رسول الله ﷺ نه کړي اونه ئي دکولوحکم کړی وی اونه صحابه وو رضی الله تعالی عنهم کړی وي هغه ددین کار ګڼل ګواکي درسول الله ﷺ اوصحابه وو کمښت وایو ګواکي العیاذبالله هغوئ نه پوهیدل اومونږئي اداء کوو. الله ﷻ مودي وساتي.

کومي خبری چې په حشرکي نه راځخه پوښتل کیږي، په هغوئ پوختیدل په کارنه دی بلکه هغه خبري چې دحشرپه میدان پوښتل کیږي په هغوئ عمل کول په کاردی.

الله ﷻ دي مونږاوټول مسلمانان نراوښځي له بدعت څخه وساتي. آمین.

امام غزالي رحمة الله علیه فرمائي: کومه خبره چې له صحابه وو څخه ثابته نه وی اوپه هغې نوي خبره دخه مودی لپاره اتفاق هم شوی وي نوتاسوورباندي خطانه شئ اودهغې په بدل دسلفوپه طریقه تینګاروکړئ، الله ﷻ به مومرسته وکړي. حواله: فتاوی عالمکیري توک۱مخ۱۰۷ په مقدمه کي

**بدعت څه ته ویل کیږي؟**

زماعزیزانو بدعت څه ته ویل کیږي؟ډیرخلک په دی نه پوهیږی اوپه زړه کي شیطان وسوسه ورته اچوي چې دقرآن کریم ترجمه، دحدیث شریف کتابونه، مدرسې اومسجدونه، دلمانځه لپاره هرډول انتظام

ټول بدعت دی. دا خبري د رسول الله ﷺ په زمانه کي نه وي نوولي دا په عمل کي راوړل کيږي. دا ډيري وسوسي دي چي شيطان ئي د ډيرو خلکو په زړونو کي اچوي. خو ګوري هغه څه چي د دين د انتظام لپاره دي، عمل نه دی. عمل يو څه دی او انتظام بيل شی وي. که په عمل کي څه شی راپيداشي هغه بدعت بلل کيږي او عمل ورباندی منع دی که د بدعت پريښودلو لپاره ويل کيږي نو وايي داولي بد دی، دا ښه خبره ده منع ئي له کومه راغلي ده.

جواب ګوري، کلمه طيبه خورا ښه شی دی. د هرچا خوښه ده څوک نشته چي ورته محبوبه نه وي. دا کلمه د دين بنياد دی. کلمه د جنت کيلي ده. خو چي اذان کيږي اخيري الفاظ ئي لااله الاالله راځي نو که اوس څوک ورسره له ميني محمد رسول الله ووائي څه خبره ده؟ ياڅه بدي لري؟ کومه ګناه ده؟ نوولي ورسره نه ويل کيږی. کلمه به هم پوره شي. د اسلام نظام همدا کلمه ده نوولي نه ويله کيږي. په اصل کي خبره داده چي دا عمل دی او په عمل کي زياتوالی نه شي کيدلای.

په دين کي اختلاف شته. کوم څه چي دين دی هغه د ټولي دنيا د مسلمانانو لپاره يو حکم لري خو کوم چي رسم، رواج او بدعت دی هغه مختلف شکلونه لري. کله کله د هغو بدعتونو شکلونه بدل وي خو هغه چي دين دی د ټولي دنيالپاره يو حکم لري او تر قيامته پوري به هم هغسي پاته وی او نه به پکښي اختلاف پيداکيږي. مثلاً ختنه کول سنت ده. په ټوله دنيا کي مسلمانانو په ختنه کول سنت دی. په کوم ملک يا مسلک کي پکښي اختلاف نشته. نکاح کول سنت ده د ټولي دنيا په مسلمانانو کي سنت ده هيچيري پکي اختلاف نشته. هيچيري د سهار لمونځ د دوو رکعتونو په ځای دري رکعته نه کيږي.

دجمعي لمونځ دوه رکعته دی په ټوله دنیاکي مسلمانان هغه دوه رکعته کوي داخترلمونځ دوه رکعته دی ټول ئي دوه رکعته کوي. دسهار، ماښام، ماخوستن، جمعي او اخترونو په لمانځه کي قرائت په لوړږغ ویل کیږي په ماپښین اومازیګرکی خفیه ویل کیږي. که کوم بدعتی ملا په مازیګرکي قرائت په زوره ووائي نوخورابي علمه مسلمان به هغه منع کړي. دماښام دري رکعته لمونځ فرض دی، اختلاف پکښي نشته که کوم مولوي ماښام څلوررکعته فرض لمونځ کوي نوخورابي علمه مسلمان به ئي رامنع کوی اوکه کوم ملا په زورسره دماښام لمونځ څلوررکعته کوي. هغه به په وهلو له مسجد څخه باسي. ځکه دا احکام دی اوپه احکاموکي اختلاف نشته. اوس فکروکړئ که په لمانځه کي یورکعت څوک زیات کوی هغه باطلیږی نوزمونږرسم اورواج به څنګه قبلیږی. درمضان المبارک په میاشت کي دمیاشتي په لیدلوتراویح پیل کیږی اوداختردمیاشتي په لیدلوختمیږی دماښام په اذان روژه ماتوي. که ئي څوک دماخوستن په اذان ماتوی تاسوبه څه ورته وایاست. ستاسوالفاظ ورته داوي: وروره (دماښام په اذان دروژي دماتولووخت دی اوته ئي دماخوستن په اذان ماتوي، داروژه دی نه کیږي. بلکه ته ګنهګاریږي. ) هغه به قهریږی چي څنګه مي روژه نه کیږی زه خوئي لادوه ساعته زیاته نیسم. خوتاسي ورته وایاست. ته وهابي معلومیږي ستاسوعقیده خرابه ده. داعقیده چي دماخوستن تراذان پوري روژه نیول دی دادحشرپه میدان نه منله کیږي ځکه دادمحمد ﷺ دشریعت خلاف ده. اوپه جهالت کي شمارله کیږي.

په هرحال په مذهب کي اختلاف نه وي. په هند یابل ځای چې دمذهب په نوم اختلاف یاجګړه راپیدا کیږي هغه په حقیقت کی مذهب نه ده. هغه رسم اورواج دی اویابدعت. یوانسان په بدعت باندي عمل کوي، هغه عادت جوړیږي بیاعادت عبادت بولي حال داچې عادت نه عبات کیږي. ځکه عادت مختلف شکلونه لري په هغه کي کمی اوزیاتوالی راځي اوشکلونه ئي بدلیږي خوعبادت په ټوله نړۍ کی په یوه حکم پاته یږي نه پکښې کمښت راځي اونه ئي بڼه او شکل بدلیږي

**حدیث شریف**: حضرت براء بن عاذب ﷺ ته رسول الله ﷺ یوه دعاوښودله په هغې کی یوتوری ونبیک ؤ ځورځي وروسته ئي هغه دعادرسول الله ﷺ په حضورکي وویله اودونبیک په بدل کی ئی ورسولک توری ووایه. رسول الله ﷺ دهغه په سینه لاس کښیښود ورته وئي ویل وَنَبِیّکَ وایه (لنډیز) حواله: ترمذی توک۲ مخ ۲۹۰ حدیث نمبر۱۲۴۲ ددعابیان. صحیح بخاري توک۱ مخ۷۰ حدیث ۲۴۷ داوداسه بیان)

زماعزیزانو! تاسووګورئ رسول الله ﷺ نومورې دورسولک له ویلوڅخه منع کړ. نبی هغه دی چې دخدای ﷻ له لوري راغلی وي کوم اسماني کتاب ورباندي راغلی نه وي. خورسول هغه څوک دی چې نبی هم وي اودالله ﷻ له لوري ورباندي کتاب هم راغلی وي. تاسوپوهیږئ چې دنبی ترتوري درسول توری ښه اوغوره دی اورسول الله ﷺ نبی هم واورسول هم. خورسول الله ﷺ هغه درسول دلفظ له ویلوڅخه منع کړځکه په عمل کي زیاتوالی وواوپه عمل کي هیڅ ډول زیاتوب کول جائزنه دی. له همدی امله ئي هغه منع کړچې تادومره بدلون راوست نوربه هغه څه وائي چې زړه ئي وغواړي خوعمل هغه دی اوهغسي ئي کوه چې درته ویل شوي وي.

عزیزانو: هرشی یو حد لري. ګورئ کله چې د الله ﷻ نوم یادیږی عزوجل او سبحان الله ورسره ویل کیږی. داتوری د رسول الله ﷺ له نوم سره نه استعمالیږي حال داچې تر الله ﷻ وروسته ترټولولوړه مرتبه د رسول الله ﷺ ده. تر رسول الله ﷺ وروسته دابوبکر ﷺ مرتبه لوړه ده خو دهغه له نوم سره مونږ صلاة نه وایو بلکه دهغه له نوم سره رضی الله تعالی عنه وایو.

همداشان هرشی حدلري. خو دخپلي بي علمي له امله په مصیبت اخته یو دجیب ډکولو پیران او دګیډي ډکولو مولویان دی چې په دي کی ئي خلک اخته کړي دی. که له مونږ سره سم معلومات وي هغوئ دوکه کولای نه شوای خو زمونږ بي علمي ده چې دداسي بیدینه پیرانو او ملایانو حوصلي ئي زیاتي کړي دي. (شریعت یا جهالت مخ ۵۷۰-۶۱)

## بدعتي متوازي حکومت جوړوي

بدعت ګناه ده خو بدعتي هغه ثواب ګڼي. کوم انسان چې ګناه ثواب وګڼي هغه بیاتوبه ورڅخه نه کوي. خو هغه ګناه چې ګناه وګڼله شي، کله خو ورته دتوبي توفیق پیدا کیږي او که داتوفیق ورته پیدا نه شي لږترلږه خوځان ګنهکار ګڼي، په ګناه خو اعتراف کوي، پیښماني خو ښیي له دي امله الله ورباندي رحمت کوي. خو چیري چې ګناه ثواب ګڼل کیږي آیا هغه بیاورڅخه توبه کوي؟ آیا په زړه کي ورباندي پیښمانتیا ښیي؟

بلکه داسي خلک چې همداګناه کوی ورباندي خوشحاله کیږي ځکه وائي دثواب کارمو کړی دی. له همدي امله رسول الله ﷺ فرمائي: (كُلُّ بِدعَةٍ ضَلَالَةٌ وَكُلُّ ضَلالَةٍ فِى النَّارِ) هغه کارچې رسول الله ﷺ نه دی

بیان کړی یاصحابه وو له رسول الله ﷺ څخه بیان کړی نه وي او عمل ئي
ورباندي کړی نه وي. که خلک لـه خپلي خوا ثواب وګڼي او کوي ئي
نو هغه ګمراهی ده او هره ګمراهي دوزخ ته رسیږي.
په عقلي لحاظ تاسو وګورئ او د فیصلې لپاره عقل کافی دی. هغه
کار چې الله ﷻ نه وي ویلی، رسول الله ﷺ هغه ثواب نه وی ګڼلی
، صحابه وو په هغه عمل نه وي کړی نه ئي هغه ثواب ګڼلی وي
او امامانو هم هغه مسئله بنودلي نه وي او نه ئي هغسي عمل کړی وي.
له دی سره، سره مونږ هغه په دی مسئله د فکر کولو توفیق را نصیب
کړی. تر خود الله ﷻ او رسول الله ﷺ مقابله ونه کړای شي. بیا دهغوئ
مقابله او نافرمانی ثواب ونه ګڼو. ډیرد درد او افسوس ځای دی کومه
مسئله چې الله ﷻ ئي امر کړی نه وي، رسول الله ﷺ ویلي نه وي
، صحابه وو نه ویلي وی او نه ئي کړي وي، امامانو نه کړي وي او نه ئي
ویلي وي نو دومره کلونه وروسته دا علم له کومه شو. یوازي داده چې
شیطان په زړونو کي پیدا کړي دي. په قرآن کریم کی دي چې شیطان
په زړونو کي همداسي شیان اچوي یوه وحي د الله ﷻ له لوري وي چې
انبیاوو علیهم السلام ته راځي او بله وحی شیطان
دفاسقانو او فاجرانو زړونو ته رسوي. بد خیالونه ورته پیدا کوي د الله
ﷻ مقابله ورباندي کوي، غیر دین ورته دین ښیي. کومه مسئله چې
دخدای ﷻ له لوري ئي امر شوی نه وي. هغه په خپله وینا ثواب ګڼي.
یامعاذ الله د الله ﷻ علم ناقص ګڼي ګواکي هغه ذات ته معلومه نه وه
چې دا ثواب ده. خو دي یوه شو چې په دي کی ثواب دی. یاداچې د الله
تعالی علم وو چې په دي کي ثواب دی خو د خپلي رضا شیان ئي ونه
ویل او س تر دومره وخت وروسته معلومه شوه...

خو پوښتنه داده چې اوس دا خبره چاوښودله. چې الله ﷻ هغه خبره له ځان سره وساتله نو بیائې دي خلکوته څنګه وښودله. مګر معاذ الله په دی نه پوهیده یائې ترپوهیدلو وروسته هیره شوه. غرض دا چې معاذ الله رسول الله ﷺ ته دا علم ګواکي نه وو چې په دې شیانو کې ثواب دی. کوم چې مونږ ئې ثواب ګڼو. خو له رسول الله ﷺ سره ئې علم وو نو بیا هغه معاذ الله دا خیانت وکړ چې دا خبر به څنګه جوابیږي. آیا الله ﷻ ته معلوم نه وو؟ یا رسول الله ﷺ دا احکام وپه رسولو کې خیانت کړی دی او یا صحابه وو د دین په رسولو کې خیانت کړی دی العیاذ بالله. دا فیصله به څنګه کیږي د خدای ﷻ لپاره فکرو کړئ تردي به بل ستر فسق وي، ستره ګناه به وي آیا تردي به بل بد انساني کرداروي. بدعت ګناه ده او هغه ګناه دوئ ثواب ګڼي.

غیر دین، دین ګڼل او هغه خبره چې خدای ﷻ نه وی ویلي، رسول الله ﷺ بیان نه وي کړی، هغه خبره ورته منسوبول چې دا هم خدای ﷻ اورسول الله ﷺ ویلي دي، په همدی باندي د دوزخ وعید راغلی دی. رسول الله ﷺ فرمائي دي (کومه خبره چې ما نه وي کړي، څوک هغه ما ته منسوب کړي، د هغه سړي ځای دوزخ دی)

تاسو فکرو کړئ هغه څه چې الله ﷻ ثواب ګڼلي نه وي که څوک هغه ثواب ګڼي نو هغه آیا متوازي حکومت جوړ نه کړ. دا الله ﷻ اورسول الله ﷺ د حکومت په مقابله کي خپل حکومت نه چلوي، دین دده وي، حکومت دده وي، هر قانون چې جوړوی ګواکي هغه دا الله ﷻ د قانون په مقابل کي جوړوي. دا بغاوت بلل کیږی. متوازي حکومت جوړل بلل کیږي. ستر، ستر مجرمین معاف کیدلای شي خود حکومت په مقابل کي چې حکومت جوړوي هغه نه معافیږي.

ددې مضمون ترلوستلو وروسته فکروکړئ چې څه خبرې موږ ته ورسيږي اوورباندې وپوهيږي اوپه دې دې الله ﷻ تولوته دعمل ورکړي. آمين. (محمد رفعت قاسمى)

## په کوم فعل کې چې دسنت اوبدعت ترمنځ ترددوي

نيک مرغي داده چې عمل له سنت سره مطابق وشي اوله بدعتونوڅخه ځان وساتل شي. بلکه که دکوم فعل په هکله دسنت اوبدعت پکښې ترددوو.هغسي فعل دې پريږدى ځکه دفقه داصولو قاعده ده چې: (وَمَاتَرَدَّدَبَيْنَ الْبِدعَةِ وَالسُّنَّةِ يُترکُ لاَنّ تَرکَ البِدعَةِ لاَزِمٌ) يعني که دکوم کار په هکله دسنت اوبدعت تردد پکښي وو، هغه دې پريږدې ځکه دبدعت پريښودل لازم دى.

(فتح القدير توک ۱ مخ۴۵۵ باب السجودالسهو)

په بحرالرائق کي راځي: (انّ الحکمَ اِذاتَرَدَّدَبَينَ سنةِ وَبِدعَةِ کَانَ تَرکُ البِدعَةِ رَاجِحاًعَلى فِعلِ السُّنّةِ)

يعني چاته که په کوم حکم کې دسنت اوبدعت په هکله ترددوونودبدعت پريښودل په نسبت ترکولوبهتراوغوره دى.

(البحرالرائق توک ۳ مخ ۳۰)

په عالمګيري فتاوى کي راځي: (ومامترددبين البدعة والسنة يترک) که دڅه شي په هکله داترددووچې داسنت دى اوکه بدعت نوهغه دې پريږدي. (فتاوى عالمګيري توک۱مخ ۱۷۹)

په شامى کى دي: (اِذاتَرَدَّدَالحکمُ بَينَ سُنَّةٍوَبِدعَةٍ کَانَ تَرکُ السُّنَّةِ رَاجِحًاعَلى فِعلِ البدعَةِ) که دکوم حکم په هکله ترددووچې سنت دى اوکه بدعت نودسنت پريښودل دبدعت په عمل کولوغوره دى.

(شامى توک۱ مخ۶۰۰مکروهات الصلوة)

تردي ځايه داهدايت وشوچې که کومه خبره زړه ته راشي اوهغه غوره ښکاره شي نوفوراً دې ورباندي عمل نه کيږي ترڅو داتحقيق وشي چې دسنت موافق دی.

سلمان داراني رحمة الله عليه فرمائي: (لَايَنبَغِي لِمَن أُلهِم شَيئاً مِنَ الخَيرَاتِ يَعمَلُ بِهِ حَتَّى يسمَعَ بِهِ فِي الأَثَرِ فَيَحمَدُ لِلهِ تَعَالى اِذَاوَافَقَ السُّنَّة) يعني که دچاپه زړه کی کومه دخيرخبره الهام شوه نوورته ښائي چې ورباندي عمل ونه کړي ترڅوچې له اثرسره ئې موافق والی معلوم نه شي. که ئې په اثاروکي وجودپيداشو دخدای ﷻ شکردي وکړي چې داخبره ئې زړه ته ورغله اوله اثاروسره موافقه وه.

(احياء العلوم ټوک ۱ مخ ۸۲، مذاق العارفين ترجمه احياء العلوم ټوک ۱ مخ ۹۳، فتاوی رحيميه ټوک ۱۰ مخ ۳۷۷)

**سنت څه شي ته ويل کيږي؟**

**مسئله:-** کله چې کوم شی سنت بلل کيږي ددي معنی داده چې مونږهغه رسول الله ﷺ ته منسوب وکوودا سی شی رسول الله ﷺ ته منسوب کول جائز نه دی چې هغه رسول الله ﷺ کړی نه وي. نه ئي هغه ته څوک ترغيب کړی، نه صحابه اونه هم تابعينو کړی وي څوک چې ترڅولودسنت مينه وال وو. (آپ کی مسائل ټوک ۱ مخ ۳۲۳)

**مسئله:-** سنت درسول الله ﷺ دطريقي نوم دی، درسول الله ﷺ دکوم شي استخفاف کول کفردی. که هغه لومړی مسلمان وي بيامزاق ياسپکوالی کوي هغه مرتددی. (آپ کي مسائل ټوک ۱ مخ ۵۱)

**فرائض، واجبات، مسنونات اومستحبات څه ته ويل کيږي**

**پوښتنه:-** دفرض، واجب، مستحب، مکروه، مباح اوحرام معنی اومطلب څه ده؟

**ځواب**:- فرض هغه دی چې په قطعي دلیل سره ثابت شوی وي یعنی داچې په ثبوت کی ئي کوم شک نه وی. مثلاً هغه چې له قرآن کریم څخه ثابت شوی وي. که ئي څوک پرته له عذر څخه پریږدی؟ هغه فاسق دی اودعذاب ور. دفرضو منکر کافر دی.

**فرض دوه ډوله دي**:

الف: فرض عین: هغه دي چې اداء کول ئي پر ټولو ضروري وی لکه لمونځ اونور.

ب: فرض کفاي: هغه دي چې اداء کول ئي پر ټولو فرض نه وی. دیوه اودوو په اداء سره دټولو له ذمې څخه ساقطیږي اوکه ئي هیڅوک اداء نه کړي ټول ګنهګاریږي لکه دجنازي لمونځ. (درمختار)

واجب: هغه دي چې په ظني دلیل سره ثابت وي که ئي څوک پریږدي دعذاب وړدی. منکرئي فاسق دی کافرنه دی.

سنت: هغه فعل دی چې رسول الله ﷺ اوصحابه وو رضی الله تعالی عنهم تل کړي وی یائي په کولو تأکید کړی وی اوله عذرڅخه پرته ئي ترک کړي نه وي. په عمل کی دهغوئ حکم هم دواجبو په څیردی یعنی پرته له عذرڅخه ئي ترک کوونکی ګنهکاردی اوکه ئي څوک په ترک عادي وي، هغه سخت ګنهکاراوفاسق دی. درسول الله ﷺ له شفاعت څخه بې برخې دی. (درمختار شامي توک ۵ مخ ۲۹۵)

داسنت هم دوه ډوله دي: سنت عین اوسنت کفایه:

سنت عین: هغه دي چې اداءئي پر هرمکلف شخص سنت دی لکه دتراویحو لمونځ اونور.. سنت کفایه: هغه دي چې اداءئي پر

تولوضروري نه وي دځينوپه اداء کولواداء کيږي اوکه ئي څوک هم اداء نه کړي نوټول ګنهګاريږي لکه په مسجدکي دتراويح کول اونور.
(شامی ټوک۱مخ۵۰۲)

سنت غيرمؤکده: هغه دي چې رسول الله ﷺ اوصحابه ووډيروخت کړي وي خوکله کله ئي پرته له عذرڅخه ترک کړي هم وي. ددي سنت په کولوسترثواب دی خوترک ئي ګناه نه ده. دی ته زوائدسنت اوعادي سنت هم وائي. (شامی ټوک۱مخ۹۵)

مستحب: هغه دي چې رسول الله ﷺ ياصحابه ووکله کړي وي اوپخوانيو نيکانوهغه خوښ کړي وي. (شامی ټوک۱مخ۱۵۵)
ددی په کولوکي ثواب شته خوترک ئي ګناه نه ده. دانفل، مندوب اوتطوع هم بلل کيږي. (شامی ټوک۱مخ۹۵).

حرام: هغه دي چې ممانعت ئي په قطعي دليل سره ثابت شوي وي. منکرئي کافردی. که ئي پرته له عذره څوک وکړي فاسق اودعذاب وړدی.

تحريمي مکروه: هغه ده چې ممانعت ئي په ظني دليل سره ثابت شوی وي. پرته له عذرڅخه ئي کوونکی ګنهکاراودعذاب وړدی. منکرئي فاسق دی. (شامی ټوک۵مخ۲۹۴)

تنزيهي مکروه: هغه دي چې پرېښودل ئي ثواب لري خوپه کولوئي عذاب نشته. خويوډول قباحت دی.

مباح: هغه دی چې په کولوکي ئي ثواب اوپه نه کولوکي ئي عذاب نشته. (شامی ټوک۵مخ۲۹۴ فتاوی رحيميه ټوک۲مخ۴۱۲)

**درجب دمیاشتې ددوویشتمې ورځې دنذرحقیقت څه دی؟**

**مسئله** :- دنذرونو همدا مروج رسم بې اصله دی دشریعت خلاف ،بدعت ممنوعه دی. ځکه درجب په ۲۲ نیټه نه دامام جعفرصادق دپیدا ایښت ورځ ده اونه ئې هم دوفات ورځ دنوموړي پیدا ایښت درمضان په ۸ نیټه سنه ۸۰یا۸۳هجري کی اووفات ئې د۱۴۸کال په شوال کې شوی دی. درجب ۲۲نیټه دامام معاویه ﷺ دوفات نیټه ده. په حقیقت کې دارواج دمعاویه ﷺ دوفات په خوشحالي کی راپیدا شوي دی. کله چې دارسم پیدا کیده هغه مهال داهل سنت والجماعت غلبه وه. نوپه دی نیټه ئې شیرینی اونورڅه ښکاره ویشلای نه شوای ځکه بیائې رازښکاره کیده. دمعاویه ﷺ دښمنانوپه پټه دیوه اوبل کورته شیرینی اونورخواړه استول اوخوړل خوچې کله داخبره معلومه شوه بیائې هغه امام جعفرصادق ﷺ ته منسوب کړه اوپر هغه ئې تورولګاوو. ګواکې هغه ددې تاریخ دفاتحې حکم کړی دی. حال داچې داټول غلط اقوال دي. نواهل سنت وروڼه دې له دې رواج څخه خورالیري ځان وساتې. نه دی دارواج کوي اونه دې پکښې ګډون کوي. (فتاوی محمود ټوک ۱ مخ ۲۲۱ احسن افتاوی ټوک ۱ مخ ۳۲۸)

**مسئله** :- عام خلک درجب میاشت دمریمې رضی الله تعالی عنها روژې میاشت ګڼي اودهغې داووه ویشتمې ورځې روژه نیول غوره ګڼي اووائې په دی ورځ دروژې ثواب درزرو ورځوثواب لري. په شریعت کی ددې څه اصل نشته. که څوک نفلې روژه نیسې خپل اختیارئې دی ،الله ﷻ چې څومره وغواړي ثواب ورکوي خوله ځانه دې څوک ورته زراولک اندازه نه لګوي. ځینې ځایونه ددې میاشتې

په دې سره دثواب وعده شوی ده نو ددې کارونو خبره دینې بلل ګناه ده . (بهشتي زیور توک ۲ مخ ٦)

**مسئله** :- دصفر المظفر میاشت میرمنې نامبارکه ګڼي . ځینې ځایونه ئې په دیارلسمه ورځ څه خواږه پخوي او ویشي ئې ترڅوئي له بدي او نحوست څخه خوندي پاته شي . داعقائد دشریعت خلاف دي، توبه کول ورڅخه لازمه ده . (بهشتي زیور توک ۲ مخ ۵۹)

**مسئله** :- دځینو میرمنو عادت دی چې دبي بي فاطمي رضی الله تعالی عنها دوفات په نیته څه شی پخوی او ماشومانو ته ئې ورکوي . دثواب رسیدلو لپاره نیته مشخصه کول او غیر ضروري شیان ضروري ګڼل کوم شرعي ثبوت نه لري . (اغلاط العوام مخ ۲۱۸ - نظام الفتاوی توک ۱ مخ ۱۴۷)

## په مبارکو شپو کې په مسجدکې غونډه

**پوښتنه** :- په اخترونو ، دشعبان نیمائي ، درمضان المبارک په وروستني لسیزه کې یانورو مبارکو شپو کې عام رواج ګرزیدلی دی چې په مسجدکې دذکر او تلاوت لپاره په مسجدونو کی خلک سره راغونډیږي او په ځینې مسجدونو کی خودوینا او کولو اهتمام هم کوي . ددې شرعي حیثیت څه دی ؟

**ځواب** :- په داسې مبارکو شپو مسجدته راتلل او عبادت کول په دریو طریقو سره کیږي :

اول : مسجدته راځي دعبادت اهتمام نه کوی ، په اتفاقي توګه مسجدته راشي په ذکر او تلاوت بوخت شي دا جواز لري خو نوافل او ذکر ترمسجد په کورکی ثواب ډیر لري آن ترمسجد حرام او نبوي مسجد هم نفلي عبادت په کورکي ثواب ډیرلري .

دوهم: مسجد ته د راتللو اهتمام کوي دا بدعت دی ځکه د نوافلو لپاره مسجد ته د راتللو اهتمام کیږي او مطلب پکښي داوی چې ګواکي په مسجد کي نفل کول ترکور ډیر ثواب لري او دا په شریعت کی زیاتوالی دی. د الله ﷻ اورسول الله ﷺ مقابله ده. ځکه په حدیثونو کي په صراحت سره ښکاره ده چې نوافل په کورکي کول خوراغوره او افضل دی.

دریم: په مبارکو شپو کي په مسجد کي دډلیزو عبادتونو اهتمام کوي مثلاً: نوافل په جماعت سره کوي یادوینا او تقریر اهتمام کوي دا صورت هم بدعت دی او تردوهم صورت هم قبیح او ناوړه دی. په دي کي یوه خرابي هغه ده چې په دوهم صورت کي یاده شوه بله بدي پکښي داده چې نفلي عبادت په اجتماعي ډول کول شرعاً منع دی.

ځیني خلک وائي چې په کورونو کي شراوشوروي، ماشومان ژاړي له همدی امله دزړه ډاډ او خشوع نه پاته کیږي. دا د شیطان فریب او دوکه ده. په اصل کي خشوع او خضوع هم حاصلیږي او که د سنت خلاف زرځله آه، ژړا او د خشوع بنه اختیارشي په شرعي لحاظ هغه خشوع نه ده. د فکرکولو خبره خو داده چې رسول الله ﷺ له زیاتي مجبوري سره ، سره تهجد او نوافل په کورکي کول او هلته ئي پکښي ډیر ثواب باله او نن مونږ وایو چې په کورکي خشوع نه حاصلیږي ، ښکاره ده چې دا د شیطان دوکه ده. په حدیث شریف کي راځي چې: رسول الله ﷺ به د شپي په خپله حجره کي نفل لمونځ کاوو ، عائشه رضی الله تعالی عنها به پرته وه او پښي به ئي د رسول الله ﷺ د لمانځه پر ځای وی. د سجدي پر مهال به رسول الله ﷺ هغه په لاس لیري کولي او د سجدی ځای به ئي خلاصاوو. د شپي تیاره وه په کورکي د رڼا انتظام نه وو.

حجره دومره پراخه نه وه چې يو تن پروت واى او دوهم سجده کولاى ،نبوي مسجد هم دومره نژدې وو چې له حجرې به ئي قدم را واخيست مسجد وو ، مسجد هم مسجد نبوي وو چې فضيلت ئي ښکاره دى بيا هم رسول الله ﷺ نوافل په حجره کې کول، مسجد ته به نه وتى.
ځيني خلک وائي چې که کورېو ازې لمونځ کېږي خوب ژر راځي خو که په مسجد کې د له وي وينا او نفلونه کېږي نو خوب نه راځي او په دې صورت کې دزيات عبادت توفيق پيدا کېږي او که په کور کې ذکر او نفلي عبادت کېږى ددې نيم هم نه کېږي.
خو پوه شئ چې د عبادت کثرت يا کمښت مقصود نه دى. د ثواب دارومدار د عبادت پر کيفيت پورې اړه لري. که لږ عبادت وشي داپه زړګونو او لکونو وارې تر هغه عبادت غوره دى کوم چې د سنت خلاف وي. سنت دادى چې کله دې طبيعت ښه وه نفلونه کوه او که د خوب غلبه وه او په طبيعت کې دروند والى وو ،بيده شئ. دا له حديث شريف څخه ثابته ده. (احسن الفتاوى ټوک۱ مخ ۳۷۳ د شامى ټوک ۱ مخ ۲۴۲ او اغلاط العوام مخ ۱۱۷ په حواله)

## په مبارکوشپوکې دبيدارۍ لپاره سره غونډېدل

**مسئله :-** د برات او قدر د شپې په لټه او د عبادت لپاره په مسجد کې راغونډېدل مکروه او بدعت ده. که څوک تول شپه لمونځ کوي خو د ثواب نيت ئي نه وي او له ګناه څخه پکښې خوندي توب نه وي نو د بيدارۍ له تکليف سره ،سره څه ثواب او ثمره نه ځيني حاصلېږي ،دا د هر عبادت حال دى يعنې هغه عبادت چې د ريا لپاره وي.
(فتاوى محموديه ټوک ۱ مخ ۱۷)

**مسئله :-** د برات په شپه حلوا پخول، د کورو نو د پاکولو خيال کول په دى شپه کورونه او هديرې روښانه کول عود لګول او دا امور سنت بلل

بي دليله دی. په دي شپه دبزرګانوارواح کورته راتلل کوم قوي دليل نه لري. هغه روايات چې پکښي راغلي دی محدثين ئي صحيح نه بولي. (فتاوی محموديه ټوک۱ مخ۱۸۳)

**مسئله** :- دبرات په شپه په قبرونورونښنائي جوړول عوديابل څه لګول دجهالت رواج دی ورڅخه ځان ساتل ضروري دی. (فتاوی محموديه ټوک۱ مخ۳۲۳)

**مسئله** :- دبرات په شپه نفل کول دورځي ئي روژه نيول، که ورته فرصت وو هديري ته تلل هلته مړه شو يوته دخيردعاکول داکاردکولودی خونوراورلوبه کول، په جماعت سره نفلونه کول په هديره کی راغونډيدل دجلسي صورت اختيارول ،دحلواالتزام کول اونورچې غيرثابت امورواج شوي دي ټول دترک کولودي.

**مسئله** :- دبرات په شپه دحضرت اويس قرنی رحمة الله عليه په نوم په حلوافاتحه ويل په کوم دليل ثابت نه دي. که داشيان دثواب وړوای نوضرورپه ئي په کتاب، سنت، اجتماع، قياس يالـه مجتهدينوڅخه ثابت شوي وو. داچې ثابت نه دي نوهغوئ ديني کاربلل بدعت اوددروږدی. (فتاوی محموديه ټوک۱۵مخ۴۰۵)

**مسئله** :- دبرأت په شپه دتهجدلمونځ په دي مقصداعلانول چې کوم خلک بي نمازه دي هغوئ دي پکښي ګډون وکړي دثواب وړګرزي، داسي کول مکره اوممنوع دي. بي نمازه خلکوته دی تبليغ اوتأکيدوشي ترڅودلمانځه پابندي وکړي. دفرضوترک زغمل اودمکروه ارتکاب ته بلنه ورکول نه دهوښيارتياخبره ده اونه دشريعت لـه لوري ورتـه اجازه شته په دي شپه هم دعبادت لپاره راغونډيدل منع دی. (فتاوی محموديه ټوک۱۵ مخ۴۳۱)

**مسئله** :- په نوموړي شپه څراغونه لګول اوپه طاخچه کی خواږه ایښودل چې کوم رواج دی دابالکل ناجائزاوبدعت دی. دادیوالیانونقل دی. په مسجد کي هم دلمونځ کوونکوترضرورت زیاته رڼادرسم اورواج په نوم جوړول اصراف اوحرام دی. که ئي متولي دمسجدله شتمني څخه کوی هغه به تاوان ورکوي. دبرات دشپي اونوروهم داحکم دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۲مخ ۲۸۸)

**دربیع الاول دوولسم شپه رڼاکول**

**مسئله** :- له رسول الله ﷺ سره مینه اومحبت لرل دایمان اصل دی. دکوم بدبخت چې په زړه کي درسول الله ﷺ مینه نه وي هغه په حقیقت کي له ایمان سره ناآشنادی. له قرآن کریم اوحدیث شریف څخه ښکاره دی چې له رسول الله ﷺ سره مینه درلودل دایمان ریښه ده. دمحبت طریقه هم ښودله شوي ده ډیرمینه کوونکي ورسره صحابه وو چې لاره ئي معلومه ده.
که دربیع الاول دوولسمه شپه روښانه کول دخیرکاروای نورسول الله ﷺ به ضرورهغه بیان کړي وه. اوصحابه ووبه روښانه کړي وه. خورسول اله ﷺ داسی کړي نه دي اونه ئي ددي کارحکم کړی دی. نه کوم صحابي اوتابعي هغه رڼاکړي ده ،مجتهدواماماتوهم هغه نه ده روښانه کړي اولیاوولکه خواجه معین الدین چشتي ،شیخ عبدالقادرجیلانی رحمة الله علیهم اونوروته داشپه روښانه کړي اونه ئي ورته اجازه ورکړي ده.
که داشپه څراغان کول دثواب اوخیرذریعه وای نودي جنابانوبه روښانه کړي وای چې ترموږئي له رسول الله ﷺ سره زیاته مینه وه. په

خیر القرون کي هغه نه روښانه کول ددي ستر دلیل دی چې دا شپه ښا کول د ثواب کار نه دی نو دا کار د ثواب او قرب ذریعه بلل بدعت او مصیبت دی. همدا وجه ده چې فقهاوو رحمة الله علیهم د متبرکو شپو څراغان او روښانه کول بدعت او حرام ګڼلی او هغه ئي له اور لمانځونکو سره مشابهت بللی دی.

(فتاوی محمودیه ټوک ۱ مخ ۲۲۴ آپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۴۳)

## دربیع الاول رواجونه

**ایا د رسول الله ﷺ د محبت غوښتنه داده؟**

دربیع الاول په میاشت کي ډیرځایونه د میلاد نبی ﷺ جشنونه او غونډي کیږی. ځیني ځایونه مظاهري کیږی او شیریني ویشل کیږی او روته چنده کیږي. مسجدونه ښائسته کیږي داسي ئي سمبالوي لکه د هندوانو د ښادي مراسم چې وي. سړکونه روښانه کوي داسي چې اصراف ته رسیږی. آیا محبت دی؟ که محبت دی نو هغه د خپل نفس محبت دی. که له دی خلکو څوک وپوښتي چې تا خود خپل نفس د خوند لپاره داڅه وکړل د رسول الله ﷺ په اسلام چې کوم مصیبتونه راځي هلته دي څه مرسته وکړه ، د ځیني بي وزله مسلمانانو د اسلام لپاره سرونه وهل کیږی او نور شریني خوري. که رسول الله ﷺ تشریف راوړی او ورڅخه وپوښتل شي چې دا د چندي روپئ په دي شریني مصرف کړو او هغه وویشو او که ئي مجاهدینو او بي وزله مسلمانانو ته ورکړو آیا رسول الله ﷺ به ووائي چې په شرینی ئي مصرف کړئ؟

ورونو! کوم دردمند ته به په داسي وخت کي د شریني خوړل غوره ښکاره شي، کومه خوله به د شریني خوړلو لپاره جوړه وي څومره بې حسي ده ، څومره غضب او ظلم دی ، دا خلک د محبت دعوه لري جشن

میلادالنبی ﷺ جوړوي او مجاهدین داسلام په لارکې سرقربانوي نوکوم یو محب رسول ﷺ دی ؟

**دمیلادالنبی ﷺ جشن ته سیاسي رنګ ورکول**

دمیلادالنبی ﷺ جشن په خواهم رواج درلود. درواج په توګه به ئي دذکراهتمام کاووشریني به ئی ویشلي داهرڅه ئي کول خوخلک ورته سیاسي رنګ هم ورکوي. داسي چې دربیع الاول په دوولسمه خلک راغونډیږي تلاوت اودعاکوي. بې شکه دمسلمانانودرفاح اوارامي لپاره دعاکول غوره کاردی خومونږ په دي نه پوهیږو دایوڅه ولي په دین کي زیات شوي دي هغه داچې په معلوم تاریخ ولي سره راغونډیږي داڅنګه جائزدی؟

ځینی وائي په دی وړځ شان اوشوکت دی، یوه مولوي راته ویل چې همداسي تفریح مه منع کوئ ځکه دلته پکښي یوډول تمرین دی زړورتیاپکښي زیاتیږی. بل صاحب بیاویل دبرات په شپه داورلوبي (آتش بازي) ممانعت مه کوئ ځکه په دي کي دزړورتیا روحیه خوندي ساتله کیږي.

الله اکبر! بي حسي څومره غالبه شوه. عقلونه څومره مغلوب شول. که ددي خلکوپه اختیارکي دی وای خدای ﷻ خبرڅه شی به ئي ورڅخه جوړکړي وو.

ورونو ! دربانديي شرعي قانون حاکم دی تاسوته کوم اختیارنشته چې له ځانه بل قانون جوړکړئ. کوم قانون چې دالله ﷻ دی په هغه عمل وکړئ دهغه دعملي کولوحکم دی

ګورئ ډیرداسې قوانین شته چې دحکامولپاره ګټوروي. خو که څوک دهیوادپه قوانینوکي مثلاً یوه ماده زیاته کړي چې که چادحکومت له مأمورسره دجناب لقب ونه وایو هغه به پنځوس روپۍ جریمه وي خوکه دقانون اداره په دي پوه شي دهغه شخص په حق کی دعوی قائموي. دهغه دجرم وجه داده چې قانون جوړل دسلطنت دصاحبت کاردی. داشخص چې داماده زیاتوي که څه هم دټولوحکامولپاره ګټوره ده خوپه اصل کی داقانون جوړونکي ځان دسلطنت دحق لرلودعوه کوي. په همدي توګه که کوم بدعت دهغه درامنځته کوونکي په نظرد ټولو مسلمانانولپاره ګټورهم وي خوپه دین کي زیاتوالی دی. دالله ﷻ هغه دقانون جوړونکی مجرم دی. دادهغه خلکوجواب هم دی چې وائي په فلاني بدعت کي مصلحت دی.

ورونو! په دي خبره خوپه الله ﷻ اورسول الله ﷺ اعتراض راځي چې وائي داکارګټوردی خوخدای ﷻ هغه په دین کی راوړی نه دی. (نعوذبالله) لنډه داچې دمیلادالنبی ﷺ په جشن جوړولو نن دارنګ لیدل کیږي لوی مقصدپکښي قومي شوکت ښیي هرڅه چې دعاده هغه ترهرلمانځه وروسته هم کیدلای شي. په داسي غونډوکي ځیني داسي خلک ګډون کوي چې لمونځ هم نه کوي. یوازي یونوم دی. دادانګریزي لوستونکوحال دی بې وزله تردی زیات جواب نه لري چې دایوملي مصلحت دی اوکوم شرعي دلیل ویلای نه شي.

**داهل سنت والجماعت علماء اودربیع الاول منکرات**

دربیع الاول په میاشت کي چې منکرات خلک کوي. آیاهغوئ دمنع کولووړنه دي؟

آیا دهغه څه په ممانعت کي خلک وحشت ښکاره کوي کوم چې په قرآن او حدیث شریف کی اصل نه لري ؟

عمر ﷺ دهغي وني ریښی له دي امله وایستلي چې خلکو به ئي په زیارت کولو کی زیات اهتمام کاوو هغه ونه چې په یوه درجه فضیلت ئي په قرآن کریم کي هم یادشوی وو.

لقد رضی الله عن المؤمنین اذیبایعونک تحت الشجرة

ورونو! داهل سنت والجماعت علماء ددین په خرابي کی هیڅکله صبراوزغم نه کوي. یوازي دبدنامي په خاطرپته خوله نه کښیني، که څه هم ورڅخه څوک خفه کیږي. که خلک وپوهیږي هغوئ دحق په اوریدلو نه ناخوښه کیږي. که دومره خبره ورته وشي چې په اصل کي دایومنکردی نوڅوک نه خفه کیږي اوکه څوک په دي حقه خبره خفه کیږي هغه به ئي دزړه زیغ اوګمراهي وي.

**دمیلادالنبی دجشن رواج**

اوس یوه بله ترقي هم شوي ده چې دربیع الاول ۱۲نیټي ته خلک دعید میلادالنبی ﷺ نوم ورکوي اوهغه لمانځي.

دمیلادپه اړه علماوو مستقلي رسالي لیکلي دي لکه (براهین قاطعه) اونوري. ماهم په اصلاح الرسوم کي وراندي ځانګړی بحث کړی دی. خوددي نوي رسم چې نوم ئي عید میلادالنبی دی په هکله مي کومه مستقله رساله ترسترګو تیره شوي نه ده. دشرعي دلائلو په رڼاکي وراندي مفصل بحث شوی نه دی. نن راته په دي هکله دبیان اراده ده. دمیلادالنبی دجشن ایجادپه دی میاشت کی یوه ستره غلطي دعید میلادالنبی ایجادي داده یوه مسلمان پاچا ایجادد ی هغه

دعیسایانو په مقابل کی؟ همدا ایجاد کړچې هغوئ یوه ستره ورځ لري، خوشحالي پکښې کوي همداسې به مونږهم کوو.
خو دپاچادارایه غلطه او دسنت خلاف وه. له همدې اهتمام سره هغه مقصد ترلاسه شوی نه دی. آیادشرینی په ویشلو او دخلکو په راغوندولو دنوروقومونو مقابله کیدلای شي او هغوئ ماتولای شو.
عزیزانو! اسلام دې عارضی شوکتونو ته اړتیا نه لري. داسلام شوکت هغه دی چې کله عمر ﷺ شام ته تشریف یووړ خلکوورته دنوي جامې داغوستلو عرض وکړ. عمر ﷺ وفرمائل:
(نحن قوم اعزنا الله بالاسلام) (مونږ مسلمانان داسې قوم یو چې الله ﷻ راته په اسلام عزت رابخښلی دی)
ښاغلیو! که مونږ سپیڅلي مسلمانان یو نو زمونږ عزت د ټولو په وړاندې یو دی، زمونږ عزت په سامان او اسبابو نه دی، که دې نو په بې سراو ساماني زمونږ عزت دی.

## عیدمیلادالنبی دشرعي دلائلو په رڼاکې

په کوم وخت کې څومره فضیلت ډیروي، هغومره له شرعي حدودو څخه تجاوزالله او رسول ته ډیرناخوښه وي. له شرعی حدودو څخه دتجاوزمعیاریوازې شرعي دلائل دی یعنې کتاب ،سنت، اجتماع اوقیاس. له همدې ټولودلائلو څخه ثابتیږي چې په دې میاشت کې کوم اعمال خلکورواج کړې دي لکه عید میلادالنبی (یعنې داخترپه څیرخوښي کول، جلوسونه ایستل ،روښنائي جوړول، بیرغونه څوړند کول او نور) دا ټول دحدودو څخه وتل دی نو همدا ټول خدائ ﷻ اورسول ﷺ ته خوراناخوښه دی.

## دبدعت پيژندل

دبدعت يوه علامه داده چې کومه خبره په قرآن ،حديث، اجتماع اوقياس کي ثابته نه وي اوهغه دين وګڼل شي ، هغه بدعت ده . اوس ګورئ زمونږدورونوچې کوم اعمال دی (لکه دربيع الاول مراسم، عيدميلادالنبی ،عرس اونور ) هغه اعمال دي چې اصل ئي ثابت نه دی ،همداله دين څخه ګڼي اوکه ئي نه ګڼي ،دبدعت دقباحت رازهمدادی.

په دي که غوروشي نودبدعت په منع کولوسره تعجب نه پيښيږي. په ورځينـي ژوندکی ئـي مثال ګورئ. کـه څـوک دحکومت مأموروي، اطاعت هم ولري اودحکومت قانون چاپوي په اخيرکي يوه فقره له ځانه پکښي زياته کړي اوهغه اضافه شوی ماده دملک اوحکومت لپاره ګټوره هم وي بياهم هغه جرم ګڼل کيږی اوهغه شخص دسزامستحق وي. نوچې ددنياپه قانون کي زياتوالی جرم دی نوپه شريعت کښي څه شی زياتول چې هغه دشريعت په اصطلاح کی بدعت بلل کيږي ،جرم به نه وي؟

## دسنت اوبدعت ترمنځ شرعي پريکړه

يـوه قاعـده بـه بيـان کـړو هرشـی چـې ترخيرالقرون رااوروسته ايجادشوی دی ،په هغوی کی کوم بدعت اوکوم مندوب اومستحب دی اوله شرعت څخه ثابت ،هغه به ځرګندشي اودابه هم ښکاره شي چې داخوشحالي ښکاره کول کومه مقبوله طريقه ده اوکه نه ده. دامروجه طريقه بدعت ده اوکه نه ده ؟

## دایجادشویوشیانولومړی ډول

ترخیرالقرون وروسته چې کوم نوي شیان ایجادشوي دي، هغه دوه ډوله دي:

یوهغه چې داعي ئي هم نوی وي(یعني په خیرالقرون کي دهغوئ دضرورت اسباب نه وو ) اوهغه دمأمورله شیانوموقوف علیه وي یعني کوم شرعی حکم وروپوري اړه لري. دهغه پرته په هغه حکم عمل کیدلای نه شي. لکه: ددیني کتابونو تصنیف، دمدرسو او خانقاووجوړول چې درسول الله ﷺ په زمانه کي په دي اندازه څه نه وواوپه دي کي داسي اسباب هم نوي دي. داهغه شیان دي چې شرعی اسباب ورپوری موقوف دی . ددي تفصیل دادی چې ټولوته معلومه ده چې ددین حفاظت دټولوذمه واري ده. په خیرالقرون کي ددین دحفاظت لپاره نویوواسطوته ضرورت نه وو. حافظي دومره غښتلي وي چې څه به ئي اوریدل هغه دنقش کالحجرپه څیروو. نودسبق په څیرتقریرونوته اړتیانه وه، تدین او تقوی هم زیاته وه.

بیابلـه دوره راغلـه ، غفلـت ډیرشـو ،قوي کمـي شـوي ،دهواپرستوخلکوغلبه زیاتـه شـوه ،تـدین مغلـوب شـونوله علماووسره ددین دضائع کیدلوویره پیداشوه. دا اړتیاولیدله شوه چې ددیـن هـره برخـه تـدوین کـړي نـودیني کتابونه، حدیث، اصـول حدیث، فقه، اصول فقه او عقائدوکي کتابونه ولیکل شول اودهغوی دتدریس لپاره مدرسي جوړي شوي. له دي څخه پرته ددیـن دحفاظت بلـه لاره نـه وه. داهغـه څـه دي چـې سـبب ئـي هـم نـوی وو. پـه خیرالقـرون(داصـحابه اوتابعینوزمانـه ) کـي نـه وواوددیـن سـاتل

ورپوري تړلي دي. دا اعمال صورتاً بدعت دی خوپه حقیقت کي بدعت نه دی. بلکه په دی قاعده واجب دی چې وائي (مقدمة الواجب واجبٌ) یعني دواجب ذریعه هم واجب ده.

## دایجادشویوشیانودوهم ډول

دوهم: ډول هغه دي چې سبب ئي قدیم وي یعنی درسول الله ﷺ ،صحابه وواوتابعینوپه وخت کي ئي سبب موجودوولکه دمروجه میلادالنبی مجالیس،دریمه ،لسمه ،څلویښتي اونوربدعتونه چې اسباب ئي په خواوو.مثلاً دمیلادالنبی دغونډي جوړولولپاره سبب ووچې هغه درسول الله ﷺ دپیدا ایښت نیټه وه خورسول الله ﷺ یاصحابه وودامجلسونه نه دي جوړکړی. نوآیادصحابه ووفکردي ته نه رسیدی. که ددي کارسبب هغه مهال نه وای بیابه ویل کیدل چې هغه مهال ئي منشأنه وه خوداچې باعث اوبنیادئي موجودوونوځه وجه وه چې رسول الله ﷺ کله هم د میلادغونډه جوړه کړي نه ده. اونه صحابه وودا کارکړی دی. نوددي کارحکم دادی چې صورتاً هم بدعت دی اوپه معنی کي هم په دي قاعده دسنت اوبدعت فرق کیدلای شي اودټولو جزئیاتواواختلافي مسائلو استنباط ورڅخه کیږي. په دی دواړوکي یوعجب فرق دادی چې دالومړی ډول ئي دعلماووله لوري تجویزشوی دی اودعوامو پکښي تصرف نشته اوددوهم ډول تجویزدعوامو له خواشوی دی اوتل هغوئ پکښي تصرف کوي لکه دمیلادشریف مجلس چې دیوه پاچاله لوري ایجادشوی دی ،هغه په عواموکي شمیرل کیږي اوعوام دي چې پکښي تصرف کوي.

**داختردخوشحالي شرعي حکم**

عيدّ(اختر)هغه مهال دى چې مونږته پکښې دخوشحالي دښکاره کولوحکم دى. داچې دادينې حکم دى نودخوشحالي دښکاره کولوطريقه ئي هم دين ښکندوي. ددي تفصيل دادى: دخوشحالي ښکندول وحى ته احتياج دى. يعني که مونږکومه مذهبي خوشحالي کوو، ګوروچې په شريعت کي ئي اجازه شته او کنه؟ ځکه هغه له ځانه اختراع کول يومفسده اوبدي له ځان سره لري داچې دهغي اصل دين دى عوام ئي طريقه هم دين ګني اولويه خرابي اوفساد ده. خوددنياپه خوشحالي کي چې دنوري خرابي پکښې انديښنه نشته نوپه خپله ئي هم تجويزکولاى شو.

نن په هندوستان کي زمونږورونه درسول الله ﷺ دزيږيدلوورځ لمانځي پکښې خوښي ښکندوي اوددوئ دافکردنوروقومونودمشرانودولادت دورځو دخوشحاليوپه ليدلوراپيداشوي دي.

خوعوام داسي فکرکوي چې دايوه دنيائي خوشحالي نه ده بلکه مذهبي خوشحالي ده نوځکه ددي خوشحالي دښکندولوطريقه ښودل دوحى اجازي ته اړتيالري.

**درسول الله ﷺ دپيدايښت ورځ ديني خوشحالي ده**

اوس دادليل وګورئ: درسول الله ﷺ دپيدايښت دورځي خوشحالي، ديني خوشحالي ده. ثبوتوته ښکنده ده چې ددنيااطلاق پر دي ځمکه ياځوکيلومتره لوړه کيږي. نوکه يوه دنيائي خوشحالي واى، اثربه ئي ترځمکي پوري محدودووترهغي به لوړنه وو. درسول الله ﷺ دولادت

یوازي دځمکي دموجوداتونه بلکه دملائکو، عرش، کرسي اوډېورته عالم دخوشحالي سبب دی. ځکه درسول الله ﷺ ولادت، کفراوضلالت ختم کړی اوتوحید جامي دي دهمدي له برکته دعالم قیام دی. درسول الله ﷺ ظهوردټول عالم دبقاسبب دی نوځکه داخوشحالي په ټول عالم کي ده. داچې ددي خوشحالي اثرتردنیالوړدی نوددنیا خوشحالي نه ده یوه مذهبي خوشحالي ده نوځرنګوالي ته ئي دوحی یعنی الهی حکم اړتیا شته. اوطریقه به ئي هم الهی حکم ښیي. داخلک چې په عید میلادالنبی قائل دي مونږته دي وښیي چې دولادت دورځي نوم په کوم حکم کي عیدښودل شوی دی اودهغه صورت ئي څنګه ښودلی دی؟

**په شریعت کي دوه اخترونه دي دریم اخترنشته**

خلکوله خپله لوري عید میلادالنبی ﷺ اختراع کړی دی. رسول الله ﷺ فرمائي: مونږته الله ﷻ دوه اخترونه راکړي دي عیدالفطراوعیدالاضحی. خلکودریم اخترایجاد(پیدا) کړی دی دایه له رسول الله ﷺ سره یوه ځانګړي مقابله وي. مثال ئي داسي دی لکه داچې په قانون کي رسمي رخصتي معلومي شي خوکاتب په پای کي یوه ورځ په دي نوم زیاته کړی چې داد والي صاحب دپیدایښت دورځي رخصتي ده. نوکه له قانون جوړوونکو څخه دهمدي کارپه هکله وپوښتل شي. هغوئ داشخص مجرم بولي، په هغه دعوه کوي، داچې دهغه لپاره خوشحالي کوي خوخوشحالي بده خبره نه ده خودوهمه برخه ئي بده ده چې دحکومت په قانون کي ئي تبدیلي راوستلي ده. نوهغه مجموعه فاسده اودعوه وړباندي کیږي.

همداسې دربيع الاول په دوولسمه نيته بنه خواړه پخول ،جامې بدلول، خوشحالي کول دا شيان په خپله بدنه دي اودعتاب وړنه دي. خوخبره داده چې په دې سره دخداى ﷻ حکم بدلول راځي ځکه رسول الله ﷺ دوه اخترونه (فطراو ضحى) ښودلى دى خودوئ دريم اختر تجويز کړى دى. دادشريعت مقابله اوپکښې تبديلي ده.
(دتهانوى رحمة الله عليه له وينا وو څخه. په شکريه نداى شاهى ،مئ ۲۰۰۳)

**پوښتنه** :- په ربيع الاول اودمحرم په عشرة کې نذرونه څنګه دي؟

**ځواب** :- داتعينات بدعت ضلاله دى. که ئې خواړه دثواب په نيت وي خوړل ئې مباح دى اوصدقه ده. خوکه دهمدى بزرګانو په نوم وي د(ما اهل لغير الله) په حکم کې راځي اوداچې داولياءالله په نوم ده نوحرام دى. اودافاسدعقائدد کفرموجب ګرزي اودا افعال کفري بلل کيږى. خودمسلمان فعل ته تأويل لازم دى.

**مسئله** :- دثواب لپاره که دورځې قيدنه وي ياځانګړي خواړه نه وي يومندوب کاردى خوخواړه پکښې ځانګړي کول بدعت دى. که له تخصيص سره سره دثواب خبره مطلب وى خواړه حرام نه دي خوله ځانګړتيا سره معصيت دى. (فتاوى رشيديه مخ ۱۳۸- فتاوى محموديه ټوک ۱۵ مخ۴۲۹)

**دمولودشرعي حکم څه دى؟**

**پوښتنه** :- دمولودشريف دانعقادپه اړه شرعي حکم څه دى؟

**ځواب** :- درسول الله ﷺ دولادت يادونه ،دمبارک ويښته، نعلينو ،دناستې ولاړې خوړلو ،چښلو ،ناستى ،ملاستې اونوروبيان کول اواوريدل مستحب اودرحمت دنزول اوبرکت موجب دى. آن دهغه شي چې درسول الله ﷺ له صفت سره لږشانته ورته والى ولري ذکرئې له ثوابه خالي نه دى خوهغه چې په صحيح

احاديثو اوروايا توثابت وي اوديادوني طريقه ئي هم دسنت مطابق وي. دمبارک ولادت ذکرهم يوعمل دی. صحيح اوسمه طريقه ئي داده چې دکوم رواج له پابندی پرته دمياشتي اوورځي له تعينولو پرته، په هره مياشت ياهره نيټه چې وي، په وعظ کي په تدريس کي ياپه خپل مجلس کی ياپه خپله له قرآني آياتونو اوصحيح رواياتو سره درسول الله ﷺ دمبارک ميلاد، صفات، کمالات اومعجزات اويانورڅه بيان شي. واعظ اومقررهم باعمله اودسنت پابند، درسول الله ﷺ سپيڅلي مينه وال وي. نن سباپه رسمي مجلسونوکي خلک راغونډيږی، ناپوه شاعران قصيدي اوجعلي روايات له نغمي اوترنم سره وائي اوداطريقه ضروري ګڼي دادسنت خلاف اوبدعت دی. له صحابه وو، تابعينو، تبع تابعينو اوله امامانوڅخه ثابت نه دی. (فتاوی رحيميه ج ۲ مخ ۲۸۲ - احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۷۰)

**مسئله :-** دميلادپه غونډوکي دولادت دياد وني په مهال خلک ولاړيږی. داهم بي اصله ده درسول الله ﷺ له ارشاد، دتابعينو اوتبع تابعينو له قول اوفعل څخه ثابت نه دی دابدعت دی هيڅ اصل نه لري. دقيام التزام بدعت دی. ځان ساتل تري ضروری دی. (فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۲۰۴)

**مسئله :-** مروجه ميلادنه له قرآن کريم څخه ثابت دی اونه له حديثونوڅخه اونه هم له صحابه ووڅخه پکښي ثبوت شته. ترشپږمي پيړۍ پوري دامجالس نه وو. په لومړي ځل (اول وار) داربل باچاپه خوراشاهانه انتظام سره داغونډه جوړه کړه. ډيري روپۍ ئي ورباندي ولګولي بيادهغه په پيروي وزيرانو اواميرانو په خپل خپل

انتظام مجالس جوړکړل. هغه وخت ئي علماووپه ردکي په هره ژبه کي ليکني وکړي اوترننه ئي لاترديد جاري دی.

**مسئله** :- دميلاد محفل ته درسول الله ﷺ تشريف راوړل ثابت نه دی. داعقيده بي دليله ده اوپرته له دليل څخه داخبره رسول الله ﷺ ته منسبول چې دميلادغونډي ته تشريف راوړي ډيره خطرناکه خبره ده. سزائي جهنم دی.

دصحابه کراموپه زړونوکي درسول الله ﷺ دومره مينه وه چې بل چاته نه ده وريه برخه شوي دهغوئ طرزالعمل داووچې رسول الله ﷺ به ئي وليدنه ولاړيدل ځکه داولاړيدل په رسول الله ﷺ درانه تماميدل له همدي امله رسول الله ﷺ ورته دولاړيدلو ممانعت کاوو.

(فتاوی محموديه ټوک ۱ مخ ۱۸۲)

## په محرم ، ربيع الاول اونوروکي دوعظ حکم

**پوښتنه** :- ځيني ځايونه په مسجدونوکي د محرم له لومړی نيټي څخه ترلسمي، دربيع الاول له لومړی نيټي څخه تردوولسمي، رجب اوه ويشتمه ، دشعبان پنځلسمه، درمضان اووويشتمه دذی الحجې په لومړيوورځوکي ټول کال دشپي دماخوستن تر لمانځه وروسته وعظونه کيږی نورچاته نه دوعظ کولوتوفيق پاته کيږي اونه ورته دکنبينستلو آياداتعين بدعت دی اوکنه ؟

**ځواب** :- ديادوشويوورځوتعين په شرعيه دلائلوثابت نه دی اونه په خيرالقرون کی داسي وو. که څوک په دي ورځ، کي وعظ ضروري ګني، که څوک ورته حاضرنه شي په هغه ملامتي وائي. دوعظ کولواوريدلوثواب په دي ورځوپوري ځانګړي کوي نوداېدعت سيئه دی. نن په عامه توګه همداورځي ضروري ګني دثواب ورځي

بولي دابيشکه بدعت دی. وعظ کول چې کوم التزام پکښې نه وي يادضرورت وخت وي جائزدی خوداضروري ده چې يوازي په همدی وختونوکي وعظ ضروري ونه بولي بلکه دالهی احکامودنبودلواهتمام وکړي اوددي ورځوداتعين ختم کړي په مستقله توګه دتبليغ اوتعليم انتظام وکړي. (فتاوی محموديه ټوک ۲مخ ۱۴۵)

**دمحرم مياشت دغم مياشت بلل**

**مسئله** :- دمحرم مياشت دغم مياشت بلل جائزنه دی، حرام دی اودمحرم په مياشت کي خوشحالي نامبارکه اوناجائزبلل سخته ګناه ده. داداهل سنت دعقيدی خلاف ده. اسلام داشيان حلال بولي، اعتقاداً ياعملاً دهغوئ حرام ګڼل دايمان خطره ده.

(فتاوی رحيميه وبخاری اومسلم په حواله)

**دمحرم ثبوت**

**مسئله** :- دمحرم په لسمه دشهادت يادونه کول که څه هم په صحيحه رواياتووي ياشربت ويشل، دثواب لپاره په شربتوچنده ورکول ياشيدي ورکول داهرڅه سم نه دی اوله روافضوسره دورته والي له امله حرام دی. (فتاوی رشيديه مخ ۱۳۹)

**مسئله** :- داپابندي هم غلطه اوغيرثابته ده. که ديخني موسم هم وي شربت په خلکوچښي په دی کي ديوي غلطي عقيدی دخل شته، هغه داچې حسين ﷺ دتندي له امله شهيد شونوداشربت هغه ته رسيږي اوتنده ئي ماتيږي. ددي عقيدي اصلاح ضروري ده. داشربت هلته ،هغه ته نه رسيږي اونه دهغه شربتوته ضرورت دی. الله ﷻ هغه ته په جنت کي خورانښه نعمتونه بخښي. دهغوئ مقابله ددي ځای له شربتوسره کيدلای نه شي. (فتاوی محموديه ټوک ۱۵ مخ ۴۲۸)

**مسئله** :- دمحرم په ورځوکي دسرالشهادتين ويل منع دی وجه ئي دروافضوله مجلسونو سره ورته والی دی. (رشيديه مخ ۱۳۹)

**مسئله** :- دشريعت له لوري دمحرم په لسم اودربيع الاول په دوولسمه نيټه دکاردبندولو حکم نشته. (فتاوی محموديه ټوک ۵ مخ ۳۹۱)

## دتعزئي نه ګولودليل

**مسئله** :- دتعزيه جوړولودنه جوازاوله دين سره دمخالفت خبره اظهرمن الشمس ده. په قرآن کريم کی دي: (اَتَعبُدُونَ مَاتَنحِتُونَ) آيادهغوشيانوعبادت کوئ چې تاسوپه خپله تراشلي اوجوړکړي دي ؟نبکاره ده چې تعزيه انسان په خپل لاس جوړه کړي اوبياورته نذرمني اومرادتري غواړي ورسره داولاداوروغتيادعاکوي،سجده کوي ،دهغه زيارت دحسين ﷺ زيارت ګڼي. آياداټولي خبري دايمان له روح اوداسلام دتعليم خلاف نه دی. داټول بدعت اوناجائزدی. (فتاوی رحيميه ټوک۲ مخ۲۷۵)

**مسئله** :- په محرم کي له تعزيي سره کړه وړه شرعاً بي اصله اوناجائزدی. دادروافضوطريقه ده له علی ﷺ څخه ثابته نه ده. (فتاوی محموديه ټوک ۲مخ۱۲۹)

## دغيرذی روح شيانوتعزيه جوړول

**مسئله** :- دبي روح شيانونقشه اوتصويرجوړول په دي شرط صحيح دی چې دهغه عبادت اوخلاف الشرع درناوي ئي ونه شي. خوتعزيه جوړول له اعتقادي خرابيوڅخه خلاص نه دی. تعزيي ته سجده کيږي طواف پرکيږي ،نذرورباندي ورکول کيږي،ورباندی مراد غوښتل کيږی له همدي امله ئي جوړول اوپه کورکي ايښودل ناجائزدی. که

دکعبې اونورولـه تصویراونقشونوسره همداسې حرکات کیږی هم ناجائزدی. (فتاوی رحیمیه توک۲ مخ۲۷۷داابن تیمه دفتاوی په حواله توک۲ مخ۷۲)

**مسئله** :- تعزیـه اودمرثیـه ویلومجالس هرځای اوهروخت حرام دي، ګناه کبیره ده په تیره په مسجدونوکي داسې کارکول ظلم اومعصیت دی اودالهی عتاب سبب دی. مسلمانان دي لـه داسې حرکاتوتوبه وکړي اوداشیان حرام اوکبیره ګناه دي، کفرنـه دی اصرارکوونکي ورباندي فاسق اودتعزیروړدی. (عزیزالفتاوی توک۴ مخ۱۵)

**مسئله** :- دعاشورادورځې په هکله په شریعت کی دوه شیان ویل شوي دي:

اول: روژه نیول.

اودوهم: په اهل اوعیال باندي په خوراک کې پراختیاراوستل. په حدیث شریف کي دي چې دعاشوراپه ورځ په اهل اوعیال باندي خوراک، څښاک کی په پراخي راوستلو. الله ﷻ به په ټول کال کي ورباندي پراخي راولي. له دي پرته ددي ورځوپه هکله بل حکم نشته. (فتاوی رحیمیه توک۲ مخ۲۸۰)

**مسئله** :- دمحرم له لسمي ورځي سره دي په نهمه ورځ هم روژه ونیول شي اویادی په یوولسمه ورځ ورسره ونیوله شي یوازي دلسم په ورځ مکروه ده. (فتاوی رحیمیه توک۲ مخ۳۷۹دشامی په حواله)

**ایادمحرم دلسمې روژه دشهادت له امله ده؟**

**مسئله** :- دمحرم لسمه ورځ تراسلام وړاندي نورو امتونو په قدرسره یادوله. په هغې ورځ موسی ؑ اوبني اسرائیل الله ﷻ دفرعون له ظلم څخه وژغورل. اوهغه ظالم له ملګروسره دقلزم په سمندرګي کي ډوب شو. موسی ؑ دهمدي په شکریه کي همدا ورځ روژه ونیوله

اورسول الله ﷺ هم داورځ روژه ونیوله. دعاشوراورځ دکربلاترپیښې وړاندې دقدرپه نظرکتل کیدل. داغلطه ده چې همداورځ دحسین رضی الله عنه ترشهادت وروسته محترمه وګڼله اودشهادت له امله پکښې روژه نیوله کیږي صحیح داده چې الله ﷻ دحسین رضی الله عنه شهادت په دې مبارکه ورځ خوښ ووترڅوورته په درجواوفضائلوکې ئې زیاتوالی راشي.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۳۸۱ - فتاوی محمودیه ټوک ۲ مخ ۱۲۳)

**مسئله** :- دمحرم دمیاشتې په لسوورځوکې له حدیث شریف څخه یوازې دوې خبرې څرګندیږي. په لسمه ورځ روژه نیول اودراولاد په لګښت کې وسعت راوستل. داله دې امله چې بیادکال په اوږدوکې وراندې پراخي راځي نوراموړتول حرام دی. (اصلاح الرسوم مخ ۱۳۶)

## دمحرم په لسمه دشهادت مجلس جوړول

**مسئله** :- دمحرم په لومړۍ عشره کې دشهادت یادونه کول له روافضوسره دورته والې له امله منع ده غم اوژړاکول حرام دی. په حدیث شریف کې دمرثیوڅخه ممانعت راغلی دی. اودروایاتوخلاف بیان په ټولوبرخوکې حرام دی. په ځانګړوورځوکې چې وائې ثواب پکښې زیات دی صدقه ویشل ضاله بدعت دی. په کومه خاصه ورځ کې ئې ویشل یولغوعمل دی. دمالداراوشتمن لپاره دصدقې خوړل مکروه دی اودسید لپاره حرام دی. (فتاوی رشیدیه مخ ۱۳۹)

**مسئله** :- دحسین رضی الله عنه دماتم رسم سخت منع اومکروه دی. علامه ابن حجرمکی رحمة الله علیه لیکي: دمحرم په لسمه ورځ دروافضوپه بدعتونومه اخته کیږئ. مرثیه ویل غم اوژړاکول که جائزوای نوتردې درسول الله ﷺ دوفات ورځ وړوه. (فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۲۷۴ دسفرالسعادة په حواله)

**مسئله** :- د محرم په لسو ورځو کې د شهادت د ذکر په هکله له مولانا رشید احمد ګنګوهي څخه پوښتنه وشوه. هغه له روافضو سره د مشابهت له امله ناروا او بلل. په حدیث شریف کې دي چې: (څوک چې د کوم قوم شباهت غوره کړي هغه له هغه قوم څخه دی)
دیني مشرانو په محرم کې د شهادت له بیان څخه منع کړې ده ځکه له روافضو سره پکښې تشابه حتماً راځي. (رحیمیه ټوک ۲ مخ ۲۹۲)

**مسئله** :- د محرم په لسمه په مسجد او کور کې شریني ویشل کوم شرعي شی نه دی په قرآن او حدیث کې ثابت نه دی. دا شرعي ګڼل غلط دي. خو په بعضی روایاتو کې د محرم په لسمه روژه نیول ډیر ثواب بلل شوي دی او په دي ورځ په خوړو کې پراخي کول د برکت سبب دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۴۱۳)

**د محرم د رسمونو (رواجونو) حکم**

**پوښتنه** :- د حسین ﷺ د شهادت له کبله د تعزئي رواج، توري جامي اغوستل، په سر خاوري دوړول غم کول، مرثئي ویل، بیرغ ایستل، له ماشومانو بندي بي وزله جوړول د تعزئي په ځای کي تلاوت کول، نذرونه منل او نورو په هکله د اهل سنت والجماعت په نزد اصل څه دی؟

**ځواب** :- د حسین ﷺ شهادت یقیناً یوه دردوونکي پیښه ده. له نبوي خاندان سره د مینه کوونکو لپاره روح زورونکي واقعه دوه. ټولو ته له هغي څخه عبرت اخیستل لازم دی چې پر حق باندي ځنګه کلک درېدل په کار دی. د کوم ظالم په مقابل کې درېدل و شهید کېدل خورا لوړ مقام دی. خو بد مرغي دا ده چې د جرئت او حق ویلو د سبق د زده

کولوپر ځای هغه جاهلانه اوزنانه مراسم پر ځای کیږي. اوهغه د وفاداري دحق اداء کښي.

په شوي پوښتنه کي ځیني شیان مکروه دي، ځیني بدعت سیئه دي، ځیني حرام دي اوځیني خولاشرک ته رسیږي. داهل سنت دمسلک ورسره هیڅ دول ربط اوتعلق نشته. دادروافضوشعاردی. دهغوئ دناستي ولاړي اثربي علمه یابي عمله اهل سنت کسانوته هم رسیدلی دی. ددي بندول ضروري دی. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۲ مخ ۲۰۱)

**مسئله :-** مشهوره داده چې دمحرم په لسمه روژه نیول کیږی ځکه په همدي ورځ دیزید موررروژه نیولي وه، داغلطه ده. ځیني کسان په همدی ورځ پر قبرونوباندي خاوره اچول ضروري ګڼي. داهم کوم اصل نه لري، غلط دی.

**مسئله :-** ځیني عوام هغه ماشوم منحوس ګڼي کوم چې دمحرم په میاشت کی زیږیدلی وي داهم غلط کاردی. ځیني خلک بیانکاح یانورځه په همدی میاشت کي ناجائزبولي داباالکل غلطه ده.
(اغلاط العوام مخ ۱۸۴)

**مسئله :-** دمحرم په عشره کي ښکلاپریښودل، غوښه یانورځه نه خوړل، سینه وهل، مرثیه ویل په تعزیه باندی کوپره یانورځه ماتول، له هغي سره خواړه یانورځه دتبرک لپاره ایښودل اوبیاخوړل، تعزیه اخیستل بیاګرزیدل له باجي سره هغه پټول اونورټول بدعت سیئه دی. ځیني خولاله بدعت سره، سره په خپله حرام دی اوپه ځینوکي دشرک احتمال شته. له همدي امله ددي ټولوپریښودل ضروري دی. دتعزئي جلوس ایستل اوورسره ناجائزکارونه کول سره له دي چې بدعت ده، دهندوانو له کارونوسره پکښي مشابهت هم شته نوځکه هم حرام

دی. دا جلوس په شان او شوکت ایستل او ور سره باجه ماجه او نور ور سره لرل د خوشحالي علامه ده، ژړا او سینه وهل په خپله حرام دی. (امداد المفتین ټوک ۱ مخ ۱۸۴)

**مسئله:-** د ځینو جاهلانو باور دی چې نعوذ بالله په تعزیه کی حسین ﷺ تشریف لري له همدي امله د هغه دراتګ په هکله نذ رونه مني او دا په (ما اهل به لغیر الله) کي داخل دی او حرام دی. (اغلاط العوام مخ ۱۸۴)

**تعزیه جوړول او په مسجدکي ایښودل**

**مسئله:-** تعزیه جوړول او په مسجد کی په خپل ځای ایښودل بدعت ضلاله او ستره ګناه ده. د هغې تعظیم او تکریم کول شرک دی. ور باندي نذرا ایښودل حرام او شرک دی. په مسجد کی تعزیه ایښودل هیڅ کله جائز نه دی. په کوم مسجد کی چې تعزیه ایښودلي شوي وي، هغه لورته مخ اړول لمونځ کول مکروه دی.

او د مسجد پر اهل باندي له مسجد څخه د تعزیي ایستل واجب دی. څوک چې په مسجد کی تعزیه ږدي یا ور سره څوک مرسته کوي هغوئ ټول ګنهکار دی، له هغوئ سره ناسته ولاړه، سلام کلام کول پریښودل ضرور دی. دا تر هغه چې له دي ګناه څخه توبه وکړي.

(امداد الاحکام ټوک ۱ مخ ۱۸۱-نظام الفتاوی ټوک ۱- مخ ۱۷۰)

**مسئله:-** د بي روح شي شبه (شکل) جوړول هغه وخت جواز لري چې کومه خرابي ور باندي مرتبه نه وي که نه بیا حرام دی. له تعزئي سره چې کوم معاملات کیږي د هغوئ معصیت او بدعت بلکه کفر او شرک ته نژدي والی ئي څرګند دی نو په هغه کي چنده ورکول، ګډون کول او نور هرڅه ناجائز دي. جوړونکي او ور سره مرسته کوونکی ټول ګنهکار دي. (اغلاط العوام مخ ۱۸۲)

**مسئله :-** خلک د تعزئې په وړاندې لاس ترلي په تعظيم ولاړ وي. دهغه لورته شانه ګرزوي، دهغه ليدل زيارت ګڼي همدا سې معاملې بالکل شرک دی. (اغلاط العوام مخ ۱۸۴، اصلاح الرسوم مخ ۱۳۷)

**دیوولسمې لمانځل څه حکم لري؟**

**پوښتنه :-** هرکال دربيع الثانی دمياشتې په يوولسمه ورځ دشيخ عبدالقادر جيلانی رحمة الله عليه دوفات په مناسبت مراسم ترسره کيږي. ددې حکم څه دی؟

**ځواب :-** په دې کې شک نشته چې غوث الاعظم رحمة الله عليه يولوی شخص ؤ دهغه عظمت او محبت دايمان نښه ده او بې ادبي ورسره کول دګمراهي دليل دی. داهل سنت والجماعت عقيده داده چې په ټول مخلوق کې دانبياؤ مرتبه لوړه ده په انبياؤ کې هم د رسول الله ﷺ فضيلت خورازيات دی بيا راشده خلفاء، عشره مبشره اوصحابه درجه پر درجه رتبې لري خوتاسو ښه فکروکړئ چې دانبياء اوصحابه وو غونډې سترو شخصيتو دوفات دورځو په لمانځلو په شريعت کې کوم تاکيد نشته نو دغوث الاعظم دوفات دروځې دلمانځلو مطلب څه دی؟

لنډه دا چې دکوم رواج په هکله چې پوښتنه شوې ده دعقل اونقل دواړو خلاف ده او په بدعت کې ئې هيڅ شک نشته.

(فتاوی رحيميه ټوک ۲ مخ ۲۸۲ دفتاوی حديثيه اورشيديه په حواله)

**دیوولسمې دخوړو دخوړلو حکم**

**پوښتنه :-** که دوستان دیوولسمې يا دمحرم يا دبرات دشپې حلوا يا بل څه راوا ستوئ اخيستل ئې جواز لري؟

**ځواب** :- که داپخول داسي وي چې غیرالله دګټي اوزیان مالک ګڼي نودافعل شرک او خواړه خوړل ئي حرام فعل بدعت دی: دداسي شیانوله اخیستلوترممکن حده ځان ساتل ضروري دی ترڅو دبدعت دعامولواوتائید ګناه نه وي. (احسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۸۲)

**دشوال دمیاشتي دشپږوروژوسمه طریقه**

**مسئله** :- ځیني خلک داګمان کوي چې که دشوال دمیاشتي شپږورځي روژي دمیاشتي له پیل څخه شروع شي ثواب لري، که نه بیائي ثواب نشته. داخیال غلط دی. که په همدې میاشت کې هروخت پوره شي ثواب لري که داختردمیاشتي په اولوکي پیل شي اوکه وروسته. که یوځای ونیولي شي اوکه په متفرق ډول پوره شي ثواب لري. (زوال السنته مخ ۲۰)

**مسئله** :- ځیني خلک بیاهمداشپږروژي په قضائي روژوکی شمیري یعنی داسي چې همداشپږورځي به هم دشوال شپږورځي وی هم وربانـدي قضائي پوره شي خودقضائي روژوپه نیت سره دشوال دروژوثواب نه لري. (اغلاط العوام مخ ۱۲۲)

**دبرات په شپه حلواپخول**

**مسئله** :- په شریعت کي دبرات دشپي دومره اصل شته چې دد ی میاشتی پنځلسمه شپه اوروځ خورادبرکت شپه اورځ دي. رسول الله ﷺ به په مدینه منوره کي هدیري ته لاړاومړه شویومسلمانانوته به ئي دعاکوله. نوکه په دي ورځ څه شی صدقه شي، قرآن کریم تلاوت شي، خواړه ورکړل شي، نقده صدقه اوخیرات وکړل شي، دعاوشي دادسنت مطابق دی. نورڅه چې خلکورواج کړي دي. دحلواقیدئي

لګولی دی فاتحه لولي اوداکارپه پابندي سره کوي داواهيات دي.
کوم شيان چې په شريعت کی ضروري نه وي هغه ضروري ګڼل
اوترحدزيات پابندي ئي کول بده خبره ده، شرعي امرنه دی.
(بهشتي زيورتوک ۲ مخ۲۱ نظام الفتاوی توک ۱ مخ۱۷۴)

**مسئله :-** له حديث شريف څخه دبرات دشپې په هکله دري خبري
ثابتي دی. که هغه په مسنونه طريقه ترسره شي، دثواب موجب ګرزي.
اول: په پنځلسمه شپه هديري ته تلل او مړه شويو خلکو ته
دعاکول، صدقه اوخيرات کول اوثواب ئي مړه شويو ته بخښل
اواستغفارويل. په دی سره مړه شويوته ثواب اوګټه رسيږی. خوپه
دی کی دکومي خبري پابندي نشته، که ئي وخت په پته څه شی چاته
ورکړي نور دي له شرعي حدودو تيری نه کوي.
دوهم: په دي شپه بيداراوسيدل يوازي ياله دريوڅلورو خلکو سره
يوځای عبادت کول خودراغونډيدلو خاص اهتمام دی نه کوي.
دريم: په پنځلسه ورځ نفلي روژه نيول داعبادتونه په مسنونه طريقه
اداء کول خورابه دی. (اصلاح الرسوم مخ ۱۳۴)

**مسئله :-** دبرات په شپه دحلوا دپخلوکوم ثوبت نشته نوځکه
ناجائزاوبدعت دی. که ئي يوازي درواج په ډول پخوي اودثواب نيت
هم نه لري خودبدعت ترويج دی. بياهم حرام نه دی. (احسن الفتاوی توک۱ مخ۳۸۵)

**مسئله :-** داهم مشهوره ده چې که دبرات دشپې په حلوادرمضان
دلومړي روژي افطاروشي ثواب لري. دابالکل غلطه خبره ده. هيڅ
شرعي حيثيت نه لری. (اغلاط العوام مخ ۱۲۴ - مسائل شب برات وشب قدر)

## ځانګړي شپې روښانه کول

**پوښتنه** :- آیا د رمضان او وویشتمه او د ربیع الاول دوولسمه شپه روښانه کول او د بیرغونو انتظام د ثواب موجب دی ؟

**ځواب** :- په ځانګړو شپو کې تر ضرورت زیات روښنائي جوړول فقهاوو بدعت او اصراف بللی دی. (آپ کی مسائل تورک ۸ مخ۱۲)

## دصفري دمیاشتې په وروستنۍ چهارشنبه شریني ویشل

**پوښتنه** :- دلته داسي روایت مشهور دی چې رسول الله ﷺ د صحت غسل کړی دی. د کارخانې ملازمین شریني ویشي او که ئې ونه ویشي وائي بیا ملازم ته زیان رسیږي، کارتري پاته کیږي. د دې شرعي حکم څه دی؟

**ځواب** :- د صفري په وروستنۍ چهارشنبه د خوشحالي مراسم جوړول ،شریني ویشل شرعاً بې دلیله دی. په دې تاریخ د رسول الله ﷺ د صحت غسل ثابت نه دی. خو د مرض د شدت روایت په مدارج نبوت کې راغلی دی.

د رسول الله ﷺ د مرض په شدت د یهودانو خوشحالي ښکاره او د هغوئ د عدوت او شقاوت تقاضا ده. مسلمانان چې په دې ورځ شریني ویشي دا د مرض د شدت له امله نه دی او نه له یهودانو سره د موافقت په خاطر ده او نه له دې روایت څخه خبر دي. نه دا په خپل ذات کې شرک او کفر دی نو د شرک او کفر حکم ورباندې نه کیږي.

هو! دا ویل کیدلای شي چې دا طریقه غلطه ده ،ځان ساتل ورڅخه لازم دی. په دې ورځ د رسول الله ﷺ د صحت غسل ثابت نه دی غلطه خبره منسوب کول معصیت دی. له نیته پرته هم دیهودو طریقه غوره

کول نه ښائي. د کارخاني مالکان دي ملا زمين په ټرمي ښره وپوهوي. شريني دي په کوم بل تاريخ په ښه طريقه سره وغوښتل شي. لکه داختورغ يابله ورغ ترڅوئي په ذهن کي ونه ګرزي چې دبخل له امله ئي انکاروکړ. (فتاوی محمودیه ټوک ۱۵ مخ ۴۱۲)

**مسئله** :- دصفري دمياشتي وروستنئ چهارشنبه دخوشحالي دورځي په ډول لمانځل بيخي بي اصله اوبي دليله ده. مسلمانانوته دخوشحالي په ډول دهغي لمانځل ناجائزاودشريعت خلاف ده.

(فتاوی رحیمیه ټوک ۱ مخ ۱۲۰-۱۲۱-فتاوی رشیدیه ټوک ۱ مخ ۱۲۳، اغلاط العوام مخ ۳۷، وآپ کی مسائل ټوک ۸ مخ ۱۴۷، واحسن الفتاوی ټوک ۱ مخ ۳۶۰)

**دذيقعدي مياشت منحوسه (سپيره بلل څنګه دی؟**

**پوښتنه** :- خلک دذيقعدي مياشت ناسي ګڼي، په هغي کی دوستي اونکاح نه کوي. داڅنګه دی؟

**ځواب** :- داخورامبارکه مياشت ده. داپه (اشهرحرم) يعني دحرمت او احترام په مياشتو کي يوه خورامبارکه مياشت ده. په قرآن کريم کي دي (مِنهَا اربَعَةٌ حُرُمٌ) يعني له دوولسو مياشتو څخه څلورپکښي دعدل اوعزت مياشتي دي. (سورة التوبه)

همداسي دامياشت په اشهرحج (دحج په مياشتو) کي شامله ده. انس ﷺ فرمائي: (رسول الله ﷺ څلورعمري کړي دي اوهغوئ ټولي د ذيقعدي په مياشت کی وی پرته له هغي عمري چې له حج سره ئي وکړه. (مشکوة ټوک ۱ مخ ۲۲۱)

هغه مياشت چې رسول الله ﷺ پکښي عمري کړي دي څنګه به منحوسه وي. هغه منحوسه ګڼل اوپه هغي کي دوستي اونکاح کول نامبارک بلل دجهالت اوشرکت ذهنيت دی اوله خپله لوري يونوی

شریعت ایجاول دی. له داسي ناپاکه خیالونوتوبه کول ضروري دی.
دامیاشت ذیقعده بولي خالي ئي نه بولي اونه ورسره ورده.
(فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ ۳۸۳ دمرقات توک ۱ مخ ۳۳۹ په حوال)

## دډیرباران یاوباء په مهال داذان کول

**مسئله** :- که دتداعي په طریقه نه وي، په داسي موقع تلاوت کول جائزدی. دتداعي په صورت جائزنه دی. فقهاووپرته له لمانځه چې چیري داذان بیان کړی دی داپه هغوئ کي نشته. (احسن الفتاوی توک ۱ مخ ۳۷۲)

**مسئله** :-که په همداسي مواردوکي اذان کول شرعاً ثابت نه دي ځکه همدابدعت دی. له دي سره، سره دوي ګناوي پکښبي زیاتي دی یوداچې خلک به دلمانځه دوخت اشتباه وکړي اودسهارسنت به په شپه کي وکړي یابه دسهارپه خیال دسهارلمونځ پکښبي وکړي. بله ګناه داده چې دشپي دخلکوپه ارامتیاکي خلل پیښوی اوداګناه ده. دبدعت ارتکاب، دخلکولمنځونه بربادول، ناروغان اوکمزوري پریشانه کولوعاموخلکوته زیان رسول نودعذاب په داسي موجب عمل درحمت نزول ته امیدلرل بي عقلي ده.
دالله ﷻ له غضب اوعذاب څخه دځان ساتلوطریقه داده چې معاصی(ګناه) پریږدي دڅښتن تعالی له نافرماني څخه توبه وکړئ اوهغه راضي کړئ.
نن سباچې څومره سختي ګناوي اودعذاب موجب بدعملونه په مجلسونوکي په ورځ اوشپه کي کیږي، څوک ئي اندازه لګولای شي ؟نن دیوی ورځي بدکارونه دعامي زماني دڅوکلونودبدوکارنوڅخه ډیردي. له دی سره که داذانونولړئ پیل شي دابه له الله ﷻ سره دوکه

کول وی. الله ﷻ دې دسیئاتو دپرېښودلو، توبه کولو او استغفار توفیق راکړي. آمین

**مسئله :-** داذان د کلماتو لااله الاالله جواب عین همدا کلمات دي. محمد رسول الله ﷺ وربانـدي اضافه کول په دین کې زیاتوالی او بدعت دی.

که مؤذن تر لااله الاالله وروسته په لوړ ږغ محمد رسول الله ووائي داهرڅوک زیات او ناجائزګڼي همداسي که اذان اوریدونکي محمد رسول الله ووائي دائي له ځانه داذان په جواب کې زیاتوالی کړی دی، ناجائزدی.

(احسن الفتاوی توک ۱ مخ ۳۷۸ ونظام الفتاوی توک ۱ مخ ۱۹۲ او اغلاط العوام مخ ۵۲)

**مسئله :-** مشهوره ده چې اذان دمسجد چپ او اقامت ئي ښي طرف ته ویل کیږي. په شریعت کي ددي کوم اصل نشته، داضروري نه دی هرځای چي مناسب ښکاري اوږغ لیري رسیږي هلته دي اذان او اقامت وائي. *(محمد رفعت قاسمی رحمة الله علیه)*

**مسئله :-** ځیني خلک داذان کوونکي یادعاکوونکی ترڅنګ تیریدل ناجائزګڼي ددي هم اصل نشته. (اغلاط العوام مخ ۵۲)

**درسول الله ﷺ دنوم په اوریدلوګوتي ښکلول**

درسول الله ﷺ دنوم په اوریدلو یالیکلو ګوتي مچول ناجائزدی. ددرود شریف دویلو فضیلت په حدیثونو کي راغلی دی خو په صحیح حدیث شریف کي دګوتي مچول او په سترګو ایښودلو ثبوت نشته.

(فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ ۳۰۴ وفتاوی رحیمیه توک ۱ مخ ۵۸، بخاری اودرمختار)

**مسئله :-** درسول الله ﷺ نوم اوریدل بیالاس مچول او په سترګو ایښودل بدعت دی. په دي هکله کوم صحیح روایت نشته.

فقط مشائخو د سترګو د علاج لپاره بنودلی دی. که داذان په وخت ددي کلمو په اوریدلو ګوتي په سترګو کښیښودلي شي علاج ئي کیږی له وخت همداسي کولوئي هم نهي اومنع کړي ده. داحدیث شریف بلل یاله حدیث شریف څخه ثبوت ګڼل ناجائزاوبدعت دی.
(نظام الفتاوی توک ۱مخ۱۹۲- عین الهدایه)

## درسول الله ﷺ دمبارک ویښته زیارت کول

**مسئله**:- له حدیث شریف څخه ثابت دی چې رسول الله ﷺ خپل ویښتان په صحابه وو ویشلي دی نو که له چاسره درسول الله ﷺ ویښته وی، دتعجب خبره نه ده. که ئي صحیح سند درلود نو دهغه دي تعظیم وکړای شي. که ئي سندنه وواو دمصنوعي توب ئي هم یقین نه ووبیادی پټه خوله وي. نه دي تصدیق کوي اونه دي جعلي ګڼي. نه دی تعظیم کوي اونه هم اهانت. (فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ۲۷۷ دابن تیمیه په فتاوی توک ۱ مخ ۴۳ په حواله، بخاري شریف توک ۱ مخ۸۷۵)

**مسئله**:- که دمبارک ویښته زیارت کیږي چې په سترګوئي وویني درودشریف دي وائي. که دزیارت کولو په وخت کي که چاخواږه راوړل، هغه په دي شرط جائزدي چې دنذرنه وي بلکه دموي مبارک دخادمانو دخوشحالی لپاره تحفه راوړل شوي وي. (امدادالاحکام توک ۱ مخ۱۹۹)

## په دلیزه توګه درودشریف ویل

**پوښتنه**:- دجمعي ترلمانځه وروسته خلک یوای کښیني اوورووررو درودشریف وائي آیاداجائزدی؟

**ځواب**:- کله، کله پرته له اهتمام څخه که څه هم جوازلري خودبیالپاره دبدعت حدته رسیږي اهتمام ئي کیږي اوقیودپکښي اضافه کیږي. دشریعت پکښي کوم ثبوت نشته. داپه شریعت کي

زياتوالی دی چې داد چاحق نه دی. نوځکه له داسي امورو څخه ځان ساتل ضروري دی. هرڅوک ي يوازي چې څومره درود شريف ويلای شي هغومره دي درود شريف وائي. او هغه دبرکت سبب دی.
(احسن الفتاوی توک۱ مخ ۳۸۰)

**مسئله** :- کله که په خطبه کي درسول الله ﷺ نوم يادشي ياخطيب داآيت ووائي (يَاأَيُّهَاالَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيماً) نواوريدونکي دي درود شريف نه وائي ، همدا مهال جوازنه لري ځکه خطبه دلمانځه حکم لري نوځکه ئې په ژبه ويل جائزنه دی په زړه کې دی وائي. (احسن الفتاوی توک۱ مخ۳۸۰)

**دجمعي ترلمانځه وروسته په ډليزه توګه صلوة اوسلام**

**پوښتنه** :- ځيني ځايونه ترلمانځه وروسته په تيره ترجمعي وروسته خلک په ډليزه توګه په زوره زوره التزاماً درود اوسلام وائي اوداداهل سنت علامه بولي. څوک چې ورسره ګډون نه کوي هغه اهل سنت نه بولي ،بدعقيده ئې ګڼي. معاذالله ددرود اورسول الله ﷺ مخالف ئي بولي اوځيني خولاله حدودوتيرې کوي کافرئي ګڼي ، معاذلله، انالله.

**ځواب** :- په يقيني توګه درود اوسلام ويل دلوړي درجي عبادت اوسترعمل دی. په قرآن کريم کې ورباندي خوراپه اهتمام حکم شوی دی. په حديثونوکي ئي ډيرفضائل اوګټي بيان شوی دی. ددي سترعبادت لپاره دنوروعبادتونو په څيرڅه اصول اوآداب ښودل شوي دي ،دهغوئ مراعات کول خوراضروري دی. هغه پريښودل ،په خپلونفساني خواهشاتواوله ځانه په جوړې شويوطريقوعمل کوی دثواب په ځای ګناه اودقرب په ځای دبعد سبب کيږي.

فکروکړئ ! کـه څوک لمونځ دتحريمی پر ځای په درود شريف پيل کړي، دفاتحي پر ځای درودووايي، دسورة پر ځای درودووايي. دتکبيرانو پر ځای په رکوع اوسجده اودتشهدپر ځای درودووائي تاسي ووايا ست چې آيا داسي اجازه شته؟ آيا سمه طريقه ده ؟ لمونځ صحيح کيږی؟ کـه څوک پـه لـومړی قاعـده کـی لـه تشهدسره درودووائي دسهوسجده ورباندي اوړي نومعلومه ده چې بي موقع اوبي محله درودويل صحيح نه دی.
صلوة اوسلام پـه انفرادي ډول ويل کيږي، اجتماع، اهتمام اوالتزام ئي ثابت نه دی. لـه رسول الله ﷺ صحابه وو رضی الله تعالی عنهم تابعينو، تبع تابعينو، محديثينو، امامانو، اولياوو، مشائخوغوث الاعظم، معين الدين چشتي، خواجه نظام الدين اولياء اونوروڅخه يوه نمونه اومثال هم نه لروچې ترلمانځه وروسته پـه ډله کښينتلي وي اوپـه زوره ئي صلوة اوسلام ويلی وي. نوداطريقه يقيناً بدعت ده. دهغي ايجادکوونکی، عمل کوونکی، اصرارکوونکی اوهغه څوک چې داله دين څخه ګڼي دالله ﷻ اورسول الله ﷺ دناخوښ اولعنت مستحق دی اودبدعت په هکله چې کوم وعيددی هغه تاسوپه دي لړکي وليدل. (فتاوی رحيميه ټوک ۱۰ مخ ۴۳۰)

**په کوم عبادت کي چې اجتماع ثابته نه ده په هغه کي داجتماع مخنيوی شوی دی**

په کوم عبادت کي چې اجتماع ئي ثابته نه ده کـه هغه پـه اهتمام اوالتزام پـه اجماعي طريقه اداء کيږی هغه به مناسبه طريقه نه وي

او دهغوئ مخنيوی په کاردی له تيرونيکانو څه ئي دثبوت نموني دادي:

اول: دڅاښت لمونځ له حديث شريف څخه ثابت دی خو دهغه لپاره په مسجد کی اجتماع او اهتمام ثابت نه دی. ابن عمر ﷺ چې کله وليدل څو خلک په مسجد کي راغونډ شوي او همد المونځ کوي، هغه ئي ناخوښه وباله او بدعت ئي وښود. (عَنْ مُجَاهَدْ قالَ: دَخَلْتُ أنَا وَعُروَةُ بنُ الزُّبَيرِ المَسجِدَ فَاذا عَبدُالله نفُ عُمَرَجَالِسٌ اِلى حُجرَةِ عَائِشَةَ وَاِذَا اُنَاسٌ يُصَلُّونَ فِى المَسجِدِ صَلوةَ الضُحى قالَ فَسَألنَاهُ عَنْ صَلوتِهِم فَقَالَ بِدعَةٌ) (بخاری شريف ټوک ۱ مخ ۲۳۸)

عيدګاه ته په تلو راتلو کی تکبير (الله اکبر، الله اکبر، لااله الاالله والله اکبر، الله اکبرولله الحمد) ويل مستحب دی خو که سره يوځای کيږي په آوازسره ئي داهنګ په مراعات سره ووائي حرام دی. هريو دي بيل، بيل تکبيرووائي. (مجالس الابرار مخ ۲۱۳)

دوهم: دفطراو قرباني داخترونو، برات، درمضان المبارک وروستنی عشره کي دذالحجه لس ورځي او شپي عبادت خوراډيرفضيلت لري خو فقهاوو ليکلي دي چې ددي عبادتونو لپاره يادنفل کولو لپاره په مسجد کي ټوليدل مکروه دی.

دريم: علامه ابن الحاج په کتاب المدخل کي ليکي: (وَاِنَّمَا اجتِمَاعَهُم لِذَلِکَ فَبِدعَةٌ کَمَاتَقَدَّمَ) يعنی دجمعي په ورځ دسورة کهف په مسجد کي په اجتماعي ډول تلاوت کول بدعت دی. (په انفرادي ډول ئي تلاوت کول دزيات ثواب کاردی)
(کتاب المدخل ټوک ۲ مخ ۸۱)

څلورم: امام نافع رحمة الله علیه فرمائي: دابن عمر ﷺ په حضورکي چاوپرچل (آپرچ) هغه وویل: (الحمد لله والسلام علی رسول الله) ابن عمر ﷺ واوریدل وئي فرمائل: مونږهم داکلمات ویلای شوخورسول الله ﷺ په دی موقع کي دي کلماتودویلوهدایت کړی نه دی په دی موقع ئي دالارښوونه کړي ده (اَلحَمدُلله عَلی کُلِّ حَالٍ)
(عَن نَافِعٍ اَنّ رَجُلاً عَطسَ اِلی جَنبِ ابنَ عُمَر رض فقَالَ الحَمدُلله وَالسّلامُ عَلی رَسُولِ الله فقَالَ ابنُ عُمَر رض وَاَنَا أقُولُ الحَمدُلله عَلَيهِ وَسَلّمَ عَلّمَنَا اَن نَقُولَ الحَمدُلله عَلی کُلِّ حَالٍ) (ترمذی شریف توک ۲ مخ ۹۸ مشکوة شریف مخ ۴۰۶)
په دی کلماتوکی دازیاته کلمه (والسلام علی رسول الله) په خپل مفهوم سره ښه کلمه ده. خورسول الله ﷺ په داسي موقع هغي دویلوهدایت نه دی کړی. ابن عمر ﷺ ته داخبره نوي ښکاره شوه اوفورأئي ورڅخه انکاروکړ.
امام شاطبی رحمة الله علیه فرمائي: په عبادتونوکي ځانګړي کیفیات، طریقي اووختونه تعینول چي په شریعت کی نه وي دابدعت اوناجائزدی. (الاعتصام توک ۱ مخ ۲۴)
شاه عبدالعزیزمحدث دهلوی رحمة الله علیه فرمائي: هرهغه کارچي دصاحب الشریعت له لوري ئي ترغیب شوی نه وی دهغه ترغیب کول، که ئي وخت معلوم نه وی دهغه وخت تعین کول دادرسول الله ﷺ دسنت خلاف دی اوله سنت څخه مخالفت حرام دی. (مجموعه فتاوی عزیزی توک ۱ مخ ۹)
په بحرالرائق کي راځي: (ولان ذکرالله تعالی اذاقصدبه التخصص بوقت دون وقت اوبشئ دون شئ لم یکن مشروعاً حیث لم یرد به الشرع لانه خلاف المشروع (البحرالرائق توک ۲ مخ ۱۵۹)

## دیوه اشکال جواب

ځیني خلک په خوراساده کي سره وائي په دي کي دګناه څه خبره ده. درودویل کیږی خوپه پورتنیو یادونوکه غورو شي داخبره دورځي په څیر روښانه ده چې کوم عبادت بي موقع اوبي محله وشي هغه دملامتي وړاودمواخذي قابل دی.

ګورئ! په روایت کی دي: علی ﷺ یوه ورځ په عیدګاه کي یوکس ولید چې ترلمانځه وړاندي ئي نفل کول علی ﷺ هغه منع کړ،هغه عرض وکړ؛ امیرالمؤمنین! زمایقین دی چې الله ﷻ به ماته دلمانځه په کولوعذاب نه راکوي. علی ﷺ وفرمائل زمایقین دی کوم کار چې رسول الله ﷺ کړی نه وی دهغه ترغیب ئي هم ورکړی نه وی الله ﷻ به ورباندی ثواب ورنه کړی . نوهغه کاربه عبث وي اوعبث کاربي ګټي دی. خوویره ده چې درسول الله ﷺ له طریقي خلاف کارکول الله ﷻ عذاب ورکړی . (مجالس الابرارمځ ۱۲۹)

یوه شخص دمازیګرترلمانځه وروسته دوه رکعته نفل وکړل. سعیدبن المسیب رحمة الله علیه هغه منع کړ. هغه شخص سعیدته وویل: (یاابامحمد !اَیُعَذِّبُنِيِ اللهُ عَلَی الصَّلٰوةِ) ای ابومحمده !آیاالله ﷻ به راته په لمونځ کولوسزاراکړي؟. سعیدد وفرمائل: (لٰکِنْ یُعَذِّبُکَ اللهُ بِخِلَافِ السُّنَّةِ) یعني (عبادت دسزاموجب نه دی) خوالله ﷻ به درته دسنت په خلاف عمل سزادرکړي. (مسنددارمی)

فکروکړئ !لمونځ عبادت دی اودرسول الله ﷺ دسترګوسوړوالی دی دالله ﷻ دقـــرب ذریعـــه ده. خوداخترترلمانځـــه وړانـــدي اودمازیګرترلمانځه وروسته ئي کول دسنت خلاف دی له همدي امله

دعتاب موجب او په شدت سره منع شوی دي. نو دصلٰوة اوسلام چې کومه طریقه ایجادشوي ده ،هغه بدعت بلله کیږی. عبدالله بن مسعود ﷺ په خپل وخت کي څوکسه ولیدل چې په مسجد کي ئي په لوړږغ درودوایه. ده هغوئ بدعتیان وبلل اوله مسجدڅخه ئي وایستل. (فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ ۴۳۳-۴۲۹)

**دوهمه دعاء**

په ځینی مسجدونو کي داطریقه ده چې ترفرض لمانځه وروسته اللهم انت السلام وائي بیاسنت اونورپه مسجدکی کوي. امام اومقتدیان فاتحه وائي اواجتماعي دعاکوي اوداخوراضروري ګني. له امام سره داشرط ږدي چې داسي به فاتحه اودعاوائي. کوم خلک چې دادوهمه دعانه کوي هغه دفاتحه تارکین،ددعامنکرین وهابي،بدعقیده بولي آن له اهل سنت والجماعت څخه ئي وتلي پیژني.

سنت داده چې فرض په جماعت سره وشي دعادي هم په ګډه سره وکړي. سنت اونفل دی بیل بیل وکړي دعادي هم بیله،بیله وکړي. ترسنت اونفلونووروسته دوهمه دعاپه ګډوکول دسنت خلاف ده. اصل اودلیل نه لري. درسول الله ﷺ اوصالح سلفوطریقه داوه چې فرض لمونځ به ئي په جماعت سره وکړ دعابه هم امام اومقتدیانو په ګډه سره وکړه بیابه ئي سنت اونوافل بیل بیل کول اوهرچابه خپله دعاکوله. له صحیح حدیثونوڅخه ثابته ده چې درسول الله ﷺ عادت داووچې سنت به ئي په کورکي کول اوصحابه ووته به ئي هم هدایت کاووترڅوسنت په کورکي وکړي. یوځل رسول الله ﷺ دبن اشهل په مسجدکي دمابنام لمونځ وکړ. ترلمانځه وروسته ئي ولیدل چې په

جماعت کي ګډون کوونکي په مسجد کي سنت او نفل کوي وئي فرمائل: (دالمنځونه په کورکي کيږی) (ابوداؤد، ترمذی، نسائي، مشکوة شریف مخ۱۰۵)
په هرحال دا چې داثابت دی چې رسول الله ﷺ او صحابه وو به ډیروخت سنت په کورکي کول نو دامام او مقتدي په ګډه سره دد عا سوال نه پیدا کیږي.
آيا سنت به ئي کورکول او بيا به مسجدته راتلل او په ګډه به ئي دعا کوله؟ نه دی راغلي داسي لاشوي دی چې که به رسول الله ﷺ د مصلحت یاضرورت لپاره کله په مسجد کی سنت وکړل بيائي هم په ګډه دعا کړي نه ده. رسول الله ﷺ به پر لمانځه ولاړو وصحابه وو خپل خپل سنت وکړل اووبه وتل. له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی: (رسول الله ﷺ ترماښام وروسته په سنتوکي دومره اوږد قرائت ووایه چې لمونځ کوونکي ولاړل ) (ابوداؤدشریف مخ۱۹۱)
(كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يُطِيلُ القِرائَةَ فِى الركعَتَينِ بَعدَ المَغرِبِ حَتى يَتَفَرّقَ اهلُ المَسجِدِ )
او ابن عباس ﷺ بیان کوي: یوه شپه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضرشوم. رسول الله ﷺ د ماخوستن لمونځ اداء کړبيا په لمانځه مشغول شو آن تردي چې په مسجد کي بل څوک پاته نه شول.
(شرح معاني الاثارټوک ۱ مخ۲۰۱)
له دي څخه هم دامعلوميږی چې ترسنتووروسته امام او مقتد یان په ګډه دعا کول د سنت خلاف طریقه ده او پریښودل ئي لازم دی.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۱۰ مخ۴۴۳)
**مسئله**:- داحنافو د فقهاوو څرګند تیاد اسي ده چې ترهغه فرض وروسته چې وروسته چې ورپسي سنت شته. د فرض ترسلام ګرزولو وروسته دی

لنډه دعاکوی سنت دی وکړی او بیا دی هر څوک په خپل کار پسي ځي
او هغه فرض چې تری وروسته سنت نشته کله چې امام سلام وګرزوی
ښی یا چپ لوری ته دی مخ واړوی مأثوره اذکار دی ولولي بیا دي ټول
په ګډه دعاو کړي. په دعاکي فاتحه ویل بدعت دی کوم اصل نه لري.
وربانديي التزام او اهتمام ئي په بدعت سیئه کی داخل دی:
د مسجد متولیان دي امام په بدعت نه مجبوروي دا جبر د شریعت
خلاف او د بدعت خپرول دی. داسي کوونکی د ابتداع له امله د لویه
ګناه مرتکب دي. (امداد الاحکام ټوک ۱ مخ ۱۷۸)

**مسئله :-** په احادیثو کی د بیده کیدلو او بیدار یدلو دعا منقوله ده.
مسجد ته د ننو تلو او د تلو، تر یو ځای کیدلو وړاندي وروسته، بیت
الخلاء ته د تللو او راوتلو دعا ثابته ده او منقوله ده. تر سنت
او نوافلو وروسته ولي دعا نه ده راغلي. که ثابته وای منقوله به وه. له
دي څخه ښکاریږي چې تر سنت او نفلو وروسته د امام او مقتدیانو په
ګډه سره دعا نشته. نو دي طریقي په بدعت والي کي کومه شبه نشته
. هغه عمل مقبول دی چې خالص والي سره سره د سنت موافق هم وي.
(فتاوی رحیمیه ټوک ۲ مخ ۱۸۸ ټوک ۱۰ مخ ۴۴۴، اغلاط العوام مخ ۹۷)

**تل تر لمانځه وروسته په زوره کلمه ویل**

**پوښتنه :-** تر لمانځه وروسته په زوره کلمه لوستل څنګه دی چې
د مسبوق لمانځه ته خلل هم پیښیږي؟

**ځواب :-** تر هر فرض وروسته وربانديي التزام کول بدعت دی. په
درمختار کي راځي چې په لوړ ږغ ذکر کول په مکرهاتو کي شامل دی.
که څه هم په لوړ ږغ ذکر جائز او مستحب دی خو په خاص التزام او خاص

شکل په تیره هلته چې لمونځ کوونکو ته تشویش پیدا کیږي نومکروه اوبدعت دی. (فتاوی دارالعلوم قدیم توک ۴ مخ ۱۴)

**مسئله**:- دډیروعوامودا عادت وي چې تردعا وروسته په مخ لاس تیروی کلمه وائي. په هرحال کلمه طیبه په خپله خورالوړه درجه لري خو په دی موقع کی له احادیثو ثابته نه ده نو پرینبودل ئي مناسب دی. ددعا په ختم کې دي درود شریف ویل کیږی. ،یعني هغه دي ددعا جزنه گرزوي ترڅوئي عوام ضروری ونه گڼي.(اغلاط العوام مخ ۹۷)

**ترلمانځه وروسته مصافحه**

**مسئله**:- ترهرلمانځه وروسته دمصافحی طریقه بدعت ده. له رسول الله ﷺ اوبیا صحابه وو او امامانو څخه ثابته نه ده. (امدادالمفتین توک ۱ مخ ۳۲)

**مسئله**:- داخترونو ترلمنځو نو وروسته دمصافحې رواج بدعت دی. دنوروخت په ډول که له کوم شخص سره نوي ملاقات وومصافحه دي کوي که نه نه دي کوي. (امدادالاحکام توک ۱ مخ ۱۸۸ - نظام الفتاوی توک ۱ مخ ۱۲۸)

**مسئله**:- خلک ترپنځه گوني لمنځونو وروسته مصافحه کوی دابدعت مکروه دی. په شریعت کې اصل نه لري.

امام ته ضروري ده چې خلکوته وښيي کومه طریقه چې دسهاراومازیگریادجمعي ترلمانځه وروسته اویاترپنځه گونولمنځونو وروسته مصافه کوي ،دادبدعت طریقه ده. په شریعت کي له مسلمان سره دملاقات پروخت کیږی ترلمانځه وروسته نه کیږی. نوهغه محل چې شریعت ښودلي هغه وخت دی مصافحه کوي له سنت خلاف مصافحه دي پریږدي.

(فتاوی رحیمیه توک ۳ مخ ۷۲ دتفصیل لپاره وگورئ -مسائل آداب وملاقات)

**مسئله**:- ځینې ځایونه په عیدګاه کې مصافحه کول رواج دي. دا صحیح نه ده بدعت او مکروه ده (فتاوی محمودیه توک ۱ مخ ۳۹۲ - عین الهدایه)
مصافحه له حدیث شریف څخه ثابته ده. په دې کې فضیلت دی. رسول الله ﷺ فرمائي: (مَامِن مُسلِمَينِ يَلتَقِيَانِ فَيَتَصَافَحَانِ الاَّ غُفِرَلَهُمَا قَبلَ اَن يَتَفَرَّقَا) کله چې دوهم مسلمان سره مخامخ شي او سره مصافحه وکړي د هغوئ تر بیلوالي وړاندې ي ورته بخښنه کیږي . (ترمذی شریف توک ۱ مخ ۹۷)
له دې څخه معلومیږي چې مصافحه د مسلمانانو د ملاقات په وخت کې وروسته تر سلام مسنون او مشروع ده دا چې مصافحه د سلام تکمله ده نو تر سلام وروسته کیږي. په مجالس الابرار کې راځي: (وَاَمَّا المُصَافَحَةُ فَسُنَّةٌ عِندَ التَّلاقِيِ) مصافحه د ملاقات په وخت کې مسنون ده. له براء بن عازب ﷺ څخه روایت دی: رسول الله ﷺ فرمائي : کله چې دوه مسلمانان سره مخامخ شي او مصافحه وکړي تر بیلوالي وړاندې ئې ورته بخښنه کیږي. (مخ ۴۹۲ مجلس ۸۴)
د ملاقات په پیل کې چې سلام او جواب ئې وویل شي له دې وخته پرته که بل وخت مثلاً د پنځه ګونو لمنځونو یا د جمعې او اختر تر لمانځه وروسته مصافحه کیږي او هغه سنت ګڼي دا غلط دی. د رسول الله ﷺ او صحابه وو له عمل څخه ثابت نه دی. (فتاوی رحیمیه توک ۱۰ مخ ۳۴۵)

## د مړي په کورکي د قران کریم لپاره راغونډیدل

**مسئله**:- که په خیر القرون کې دا طریقه نه وه چې په ځانګړي ورځ، او معلوم تاریخونو به د مړي په کورکي قرآن کریم تلاوت کیدی او د ختم لپاره به ئې حافظان او نور دعوت کول، روپۍ یا شریني به

ویشل کیدل. دقرآن کریم په ویلو دروپوراکړه ورکړه یادنوروشیانودخوړلو التزام اوعادت هم منع اومکروه دی.
(فتاوی رشیدیه مخ ۱۵۷)

**مسئله** :- درېیمه ،لسمه ،څلوېښتمه اونورټول ضاله بدعت دی ،اصل نه لري ،ایصال ثواب پرته له قیده کیږی . (فتاوی رشیدیه مخ ۱۵۴)

**له جنازي سره په لوړږغ کلمه ویل**

**مسئله** :- له جنازي سره په پټه (بلکه له آوازسره) ذکرکول جوازلري خوپه زوره ویل ئي جوازنه لری ترجنازه وړاندي څوخلک یوځای کیدل اوکلمه ویل دسنت خلاف اوتحریمی مکروه دی. له جنازي سره دالله ﷻ ذکرپه زړه کی کیدلای شي په لوړږغ تحریمی مکروه دی.

**مسئله** :- دجنازي لمونځ په خپله دلوړي درجي دعاده له دی پرته بله دعاپه ډلیزه توګه ثابته نه ده. په تلوتلوکي په زړه کی دعاکولورواج یادمړه شوي په کورکی ددعالپاره دغونډیدلورواج دسنت خلاف عمل دی. (فتاوی رحیمیه توک ۲ مخ ۱۹۴ دشامی توک ۱ مخ ۸۳۸ اوبحرپه حواله)

**مسئله** :- دتعزیه لرونکو، مرثیه ویونکواوبي لمانځه خلکودجنازي لمونځ کول جائزدي. ځکه داخلک فاسقان دی اودفاسق دجنازي لمونځ کول واجب دی نوضروري دي کیږي. (فتاوی رشیدیه مخ ۲۷۰)

**مسئله** :- له بدعتي سره داسي معامله جائزنه ده چې له هغي سره ئي عزت زیاتیږی یاوړباندي بدعت غښتلی کیږی. (نظام الفتاوی توک ۱ مخ ۱۲۳)

اَللّٰهُمَّ اجعَلهُ خَالِصاً لِوَجهِکَ الکَرِیمِ وَتَقَبَّل مِنِّی اِنَّکَ اَنتَ السَّمِیعُ العَلِیمُ رَبِّ اجعَلنِی مُقِیمَ الصَّلٰوةِ وَمِن ذُرِّیَّتِی رَبَّنَا وَتَقَبَّل دُعَآءِ.

رَبَّنَا اغفِرلِی وَلِوَالِدَیَّ وَلِلمُؤمِنِینَ یَومَ یَقُومُ الحِسَابُ.

ژباړه: عبدالله ګل ریان

(تاریخ جوزا ۴۱ / ۱۳۸۲ ه‍ش جمعه)

